# ځرک

شپاړسم کال، دویمه، پرلپسې ۱۰۹مه ګڼه،
جدي ۱۳۹۷ل، جمادی الأولی ۱۴۴۰هـ ق، دسمبر ۲۰۱۸م

## د کابل اداره دې خیالي خوبونه اوبوته وواېي!!



## د معارف په حریم

د کډ دښمن تېري او جنایات

آه! د علومو هغه ځلاند کهکشان ...

استاد العلماء **مولانا حمد الله جان**

هم دهسکه پریوت ... !

- در اوج انزوا سیاسی
- کابل رژیم له امریکایانو پرته خپل سیوري په اوبو کې ویني!!
- د امریکا متضاد دریځ او د اسلامي امارت معقول او نتیجه خیز موقف
- د مرحوم الحاج مولوي سیدمحمد حقاني رحمه الله د دریم تلین په یاد!



2019

# اعتراف امریکا به شکست در جنگ افغانستان

# څرک

علمي، فرهنګي، ټولنيزه اسلامي خپرونه

شپاړسم کال، دویمه، پرلپسې ۱۰۹مه ګڼه،
جدي۱۳۹۷ل، جمادي الأولی۱۴۴۰هـ ق، جنوري۲۰۱۹م

امتیاز :

دا متیازخاوند : دافغانستان اسلامي امارت دفرهنګي چارو کمیسیون

مسؤل مدیر : عبید تنویر

لیکوال پلاوی : ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مېړنی او افضل محمد تراب

ګډون :

| | |
|---|---|
| افغانستان : | ۳۵۰ افغانۍ |
| پاکستان : | ۵۰۰ کلدارې |
| امریکا : | ۷۰ ډالره |
| اروپا : | ۷۰ یورو |
| یوه ګڼه : | ۳۰ افغانۍ<br>۶۰ کلدارې |

یادونه

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې دادارې دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

پتې :



srak_111@yahoo.com


## لړلیک

بسم الله الرحمن الرحيم

سرمقاله

# د کابل اداره دې خيالي خوبونه اوبو ته ووايي!!

دمتعال رب جل جلاله په نصرت او مدد او د باتورو افغانانو د ميړاني او قربانيو په برکت نور هغه شيبې او وخت رارسيدلی چې امريکايان له افغانستان څخه ناولي پښې سپکې او د افغان مجاهد ولس تاريخي عظمت او فولادي عزم ته په دواړو لاسونو سلامي شي.

د امريکا ولسمشر (ټرمپ) دجنوري په رومبی نيټه چې خپلې کابينې ته کومه وينا وکړه له شک پرته يې په افغانستان کې په خپل تاريخي شکست او ماتې اعتراف وکړ او افغانستان يې هغه هيواد وباله چې امپراطوری نسکوروي او د افغانانوپه اصطلاح دپولی ټک ته يې کينوي .

ټرمپ ووئيل چې دتيرو ۱۸ کلونو په موده کې د زرګونو امريکايي عسکرو مرګ ژوبله او د يونيم تريليون ډالرو لګښت هدر اوبې نتيجې وو له همدې امله هغه وخت رارسيدلی چې خپله بستره له افغانستان څخه په پرده کې راټوله او پوځيان راوباسي دټرمپ په خبره په همدې نيت يې له طالبانوسره جدي مذاکرات هم پيل کړي

اسلامي امارت هم دټرمپ د مذاکراتو او خبرو اعلان ته مثبت ځواب ووايه او د خليلزاد په مشری له امريکايي مرکچي پلاوي سره چمتوشوپه قطر او ابوظبی کې مخامخ او موثر مذاکرات ترسره کړي

وروستی ناسته چې د متحده اماراتو د ابوظبی په ښار کې وه د راپورونو ترمخه موافقه په دې وشوه چې په راتلونکي ناسته کې به له افغانستان څخه د امريکايي عسکرو په انخلا خبرې کيږي او اسلامي امارت به امريکايانو ته دهغوي انديښنوپه اړه ډاډ ورکوي

دکابل ګوډاګي رژيم چې دټرمپ ورستي وينا اوبياله اسلامي امارت دامريکايي پلاوي نيغ په نيغه اوتاوده مذاکرات وليدل دغه حالت ورڅخه واريارخطاکړ اوخپله شرميدلي اوشړيدلي څيره يې په اوبوکې وليده چې که امريکايي لښکري ووځي نوبيابه د دوئ حشراوبرخليک څه وي ؟

نودسيمي هيوادونوته يې زاری اونواتي پيل کړل پلاوي يې ورواستول ترڅو امريکايان پرينږدي چې له طالبانوسره يوې پريکړې ته ورسيږی؛ اودهغه ترڅنګ يې دسيمي له هيوادونووغوښتل چې يوځل بياپه طالبانو له مختلفولارو اوچينلونوفشارراوړي چې دکابل له حلقه بګوش رژيم سره مذاکرات وکړي

خليلزاد هم دورستی هڅي اوحربي په توګه دتيروتني په دام کې ولويد او فکريې وکړچې دسيمي دهيوادونودفشارونوپه مقابل کې به اسلامي امارت له خپل غښتلي دريځ څخه په شا اودکابل له اداري سره به خبرو او مذاکراتوته امادګي وښيي.

اسلامي امارت دکابل رژيم دورستيومکاروهڅو او دخليلزاد د پارونکوتحرکاتو په مقابل کې په خورا مدللو او صريحو ټکو اعلاميه صادره کړه امريکايي پلاوی يې په عهد شکنی اوتذوير تورن کړ او د دوام په صورت کې يې ددې خبرې امکان شونی وباله چې دمذاکراتو بهيربه ورسره ودروي، په اعلاميه کې دسيمي ځينو هيوادونوته هم خطاب شوی چې دافغانستان په موضوع کې دی له غرضي لاس وهنوڅخه ډډه وکړي اوپه لوی لاس دې ددې هڅه نکوي چې دافغانانودنيږدي ۲ لسيزوقربانيوثمري اوهيلي خدای ناخواسته له جټکاوستونزوسره لاس اوګريوان کړي

په اعلاميه کې واضحه شوي چې افغانستان امريکايانواشغال کړی اوله تيرو۱۸ کلونوراهيسې- جګړه هم دامريکايانوپه باروتواوډالروروانه ده که يوه ورځ هم امريکايان له دغې ورانونکي جګړي څخه لاس واخلي په افغانستان کې جګړه دريږي

نودغه ټول حقائيق ددې ايجاب کوي چې دسولي اوروغې خبري بائيدله امريکايانو سره وشي نه له هغه چاسره چې امريکايانوراوستلی اودامريکايي اشغال زيږدنده بلل کيږي .

دکابل فاسده اداره دې پوه وي چې امريکايان په هرقيمت اوبيه چې وي له افغانستان څخه پښې سپکول غواړي اودټرمپ په خبره دافغانستان جګړې له پخواني شوروي اتحادڅخه روسيه او يو ديواليه هيواد جوړ کړ امريکايان خپل همدغه حشر-په سترګوګوري نوخپل نجات اوپرده په دې کې وينی چې هرڅومره ژرکيدلای شي دافغانستان له جنګ اوبحران څخه ځان خلاص کړي داچې ددوئ له وتلوورسته به دکابل رژيم اوغلامانوبرخليک څه وي اوڅوورځې به دوام کوي داخبره اوحالت امريکايانوته کوم ارزښت اواهميت نه لري.

که دکابل اداره داخيال اوسوچ کوي چې دبې ځايه فشارونواوخندونوپه زريعه به اسلامي امارت له خپلې تګلاري واړوي اودافغانستان دبرخليک ټاکلوواک اوصلاحيت به دنړۍ په کچه دفساد اودرغليو(نمبرون )رژيم ته په اختيارکې ورکړي داخيال اوخوبونه دې اوبوته ووايي .

# افغانستان کې د امریکا پوځي موجودیت د ټولو سیمې امنیت ګوابني !

بهیر افغان



خبري رسنیو له قوله: دروان کال ۲۰۱۹ زکال دجنوري په ۸-۹ نیټه دقطر اسلامي هیواد په وساطت داسلامي امارت د سیاسي استازو او دامریکا دبهرنیو چارو وزارت د ځانګړي استازي زلمي خلیل زاد ترمنځ د ابو ظهبي غونډې وروسته دیاد هیواد په پلاز مینه دوحه کې ددوهمې غونډې د جوړیدو تمه وه

ویل کېږي دیادې غونډې دجوړیدو په اړه داسلامي امارت داستازو او خلیل زاد ترمنځ توافق هم شوی و چې په دې لړ کې دجوړیدو ورځې ، نیټې او ځای هم د دواړو لوریو په رضایت باندې غوره شوي وو

خو دغونډې نه یوه ورځ وړاندې دامریکا دبهرنیو چارو وزارت لخوا دزلمي خلیل زاد دسفر په اړه کوم معلومات خپاره کړای شو ل په هغو کې قطر ته دهغه د سفر ورځ او نیټه نه وه ښودل شوې په وجه یې هغه مهال د ډیرو کتونکو اوڅیړونکو سره دا اندیښنه پیدا شوه چې ښکاري امریکاغواړي داځل دوحې غونډه لغوه کړې

هم هغسې رښتیا پیښ شول امریکایي پلاوی دزلمي خلیل زاد په مشرۍ د دوحې غونډې لپاره په ټاکلي نیټه لاړ نشو او هم دا راز داسلامي امارت یوشمیر هغه استازي چې دقطر نه بیرون وو او غوښتل یې قطرته ورشي دهغوی په وړاندې یې قصدا او عمداً موانع رامنځته کړای شول او هغوی ونشوای کولی پخپل وخت قطرته ځانونه ورسوي

تردي مهاله امریکایانو په دوحه کې دغونډې ځنډولو په اړه رسماً کوم سپیناوی ندی کړی خو اسلامي امارت ته نیږدې منابعو دا پخلی کړی چې دقطر غونډه امریکا دبهرنیو چارو وزارت د ځانګړي استازي خلیل زاد دنه ورتګ په وجه ترنامعلوم وخت پورې و ځنډیده، کنه د دوی سیاسي استازي په ټاکلي نیټه تیارو ل چې دامریکا سره له افغانستانه دامریکایې عسکرو دبشپړې انخلاء دموضوع سربیره په نورو اړوند موضوعاتو وغږیږي ، اوس داچې امریکایان غونډې ته حاضر نشول او دخپلې کړې ژمنې څخه په شا شول نوله امله یې په یاده نیټه داسلامي امارت او امریکایانو ترمنځ دخبرو فرصت برابر نشو چې په دې سره د دواړو ترمنځ شاید داعتماد اوباور هغه نیمګړې فضاء چې په تیرو څو میاشتو کې رامنځته شوې وه هغه شاید په دې سره ټکان وخوري

دسیاسي چارو کارپوهان دامریکا دوه مخې ، یاله کړې وعدې نه تخلف حیرانوونکی نه بولي! ولې هغوی ته دا جوته ده چې امریکا هر کله هم او هرځای دخپل ځان ګټې یا برې ونه ویني هغه په ډیره سپین سترګۍ سره خپله رویه بدلوي او دهیڅ کومې ژمنې یا وعدې دتخلف پروا نلري بلکې هنوز

دخپل بري پخاطر د نورو حربو او دسیسو په کارولو باندې سوچ او غور پیلوي

دابو ظهبي په غونډه کې امریکا ولیدل چې داسلامي امارت استازي دخپل مشروع حق او مسیر ( دافغانستان دازادۍ ) څخه نه اوړي او دقوي دلایلو په وړاندې کولو هغه دامریکایې ځواکونو دویستلو غوښتنه کوي او په مقابل کې د دوی (امریکا) سره هیڅ داسې قانع کوونې دلایل نشته چې په وړاندې کولو سره یې افغانستان کې دخپل پوځي پایښت نه دفاع وکړای شي

نو دمخامخ خبرو په ځای داسلامي امارت په وړاندې دبحث او مکالمې لپاره اسلامي هیوادونه وړاندې کوي او دهغوی نه یو ځل بیا د سپر اوډال په حیث کار اخلي څو هغوی دځینو مجبوریتونو څخه په ناوړه ګټه پورته کولو په امارت باندې فشار ډیر کړي

لیکن دتیرو اوولس کلو تجروبو ښودلې چې دغه ډول فشارونه او حربي کارول به روان وضعیت لاپسې پیچلی کړي او مشکلات او ستونزې به زیاتې کړي زکه اسلامي امارت دټولو نړیوالو اصولو او مقرراتو په پام کې نیولو سره دخپل هیواد او ولس دزادۍ داعیه لري او دهمدې پخاطر دتیرو اوولس کلو نه بیدریغه قرباني ورکوي هغه به هیڅکله دکوم فشار په وړاندې دخپل ولس دمشروع داعیې څخه لاس په سر نشي نو ویلی شو چې په اسلامي امارت فشارونه ډیرول به دستونزو دحلولو سره مرسته ونکړي

داخبره لکه د لمر روښانه ده چې ازادې ترلاسه کول دا دافغان ولس یو منلی حق دی، هیڅوک ددې حق داخستلو په وړاندې دخنډ کیدو جواز نلري ، زکه اسلامي امارت د خپل هیواد (افغانستان) نه داشغال دپای ته رسولو شعار لري، په دې علاوه نه کومه نړیواله برنامه او اجندا نلري ، نه دافغانستان په ګاونډ کې میشت هیوادو او ولسونو لپاره کوم ګواښ یا خطر دی اونه دافغانستان دجغرافیې څخه بیرون دخپلې سیاسي ایډیا دخورولو نیت یاپلان لري نو بیا په کوم منطق او دلیل به دسیمې او منطقې ولسونه یا هیوادونه حق ولري چې هغوی دي دامریکا دګټو پخاطر داسلامي امارت سره خپل علایق او روابط په خطر کې واچوي بناءً دسیمې او اسلامي نړۍ حکومتونه باید په دې برخه مسؤلانه برخورد وکړي، نه دامریکا په پلوۍ او ملاتړبرخورد! هغوی باید هیڅکله هم ځانونه دامریکا دبري لپاره سپر نکړي ، زکه په سیمه کې دامریکا پوځي شتون دهیڅ ولس او د هیڅ هیواد لپاره په خیر ندی ضرورت دی چې اسلامي هیوادو نه او هم دمنطقي هیوادونه دخپلو هیوادونو او خلکو دمصالحو پخاطر له افغانستانه دامریکا یې عسکرو دوتلو سره مرسته وکړي او نه په افغانستان کې دامریکایې ځواکونو دپایښت په پلوۍ ودریږي، کنه دابه یوه لویه تاریخي اشتباه وې چې په داسې وخت کې هغوی دافغانانو دازادۍ په وړاندې خنډونه او موانع رامنځته کړي دامریکا پوځي شتون نه واځې دافغانستان لپاره بدعواقب لپاره لري بلکې دټولو سیمې او ګاونډیو هیوادو خوشالې او سوکالې په خطر کې اچوي نودعقل غوښتنه داده چې دسیمې او ګاونډیو هیوادونه هم لکه داسلامي امارت په کله له امریکا وغواړي چې نور دافغانستان اشغال پای ته ورسوي او خپل ټول عسکر په لنډه موده بیرته ورغواړي او په دې کې دټولې سیمې او نړۍ ثبات او خیر نغښتی دی



عابد مجاهد

# د طالبانو سیاسي او پوځي هڅې غبرګې پرمخ رواني دي

پر افغانستان دامریکا لـه یرغـل سره سم دهغوی په وړاندې دمبارزې او جهاد څرګندونې لا د ډېرو په اند لېونتوب بلـل کېده او په دې اړه ادنی هڅې هم دځان لـه ورک کولو پرتـه بلـه هیڅ ډول پایلـه نـه لرله، یواځې په اسلامي لارښوونو ټینګـه عقیده وه چې د بري تضمین یې کاوه، کنـه په ظاهري اسبابو هیڅ ډول پرتلنه نه لیـدل کېده او نه وه .

همدا تضـمین عالیقـدر امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په ډېرو ساده ټکـو خپلو افرادو ته ور القاء کړ او ویې ویـل : " الله تعالی راسره د نصرت وعده کړې او دښمن دماتې وعده راکوي، وبه ګورو چې دچا وعده رښتیا کیږي ..."

له همدې فکر نـه پـه الهام طالبـان دمایوسۍ ښکار نـه شـول او خپلـې وسـله والې مبارزې ته یې دوام ورکړ، چې دادی نن دبري تر پولو رسېدلې ښکاري .

همدا فکر او عقیده ده چې طالبـان دنظام په جوړونه کې هـم داسـلامي نظام بل هیڅ بدیل نهویني او په افغانستان کـې دسـوچه اسـلامي نظـام پــه حاکمیـت ټینګارکوي اوبـل هـر ډول مخلـوط نظـام دافغاني ټولنې دمزاج خلاف بولي .

په نظامي ډګر کې لـه هغـه وروسـته چې مقابل لورى وبلل شو او ځان یې دیـوه وسـله وال ځـواک پـه ډول ثابـت کـړ، طالبانو دتېـر پـه پرتلـه د راتلـونکي لپـاره خپله تګلاره داسې تیـاره کـړه چې د دوی په وس پوره او مسؤلیت یې دشته شرایطو او امکانـاتو پــه حـدودو کــې تـرسره کېدونکې وګاڼه، ځکـه یـې خپلـه مبـارزه دافغانستان تر پولو محصـوره وبللـه او پـه دې ډول له دې سره سره چې ډېـر متوجـه خطرونه یې له ځانه دفع کړل° لـه نظامي ځواک سره په څنګ کې یو قـوي سیاسي ځواک هم شو .

دلتـه کـه خبـره ډېـره نـه اوږدیـږي ددغې تګلارې دتائید په ډول به یوه شرعي اصل ته هم لږ اشاره وکړم :

درسول الله ﷺ د دعـوت مکـي او مدني دور ته که وګورو ډېـر مهـم تفـاوت یې چې لیدل کیـږي هغـه دمکـي او مـدني دور شاوخوا شرایط او امکانـات دي چـې خورا سره بېل او جلاوو ، په مکه مکرمـه کې حالات ، شرایط او امکانات ددې نه و

چې په جهر دعوت وشي او وسلې ته لاس شي، خوپه مدینه منوره کې شرایطو او امکاناتو ته په کتو بیاعملي جهاد او وسله واله مبارزه پیل شوه.

دطالبانو دریځ دهمدې اصل په بنا طرح شوی که څه هم له پیله یې نورو هیوادو ته دخپلې مبارزې دسرایت شعار نه دی ورکړی ولې تصریح یې اوسنیوشرایطو ته په پام چې دپولو او حدودو بلوا پکې عامه ده په کار وه . دلته دطالبانو دمشرتابه او زعامت سیاسي بصیرت، پوهه او استقامت دستایلو دی چې خورا په احتیاط ګام پورته کوي او ترهیځ ډول فشار لاندې نه راځي، همدا علت کېدای شي چې له ډېرو سختو ننګونوهم بریالي راووتل .

دمسکو له غونډې مخکې که څه هم طالبانو بېلابېلو هیوادونو ته پټ او ښکاره سفرونه کړي او دبېلابېلو علمي او تحقیقاتي مرکزونو په غونډو کې یې برخه اخیستې° خو دمسکو له غونډې سره یې چې خپل دریځ ډېرپربکنده څرګند کړ° سیاسي هڅو یې خورا مثبته نتیجه ورکړه او نړۍ ته یې له ډېر پیاوړي دریځ سره ځان ور وپېژاند.

بالاخره دطالبانو دې خبرې ته چې دافغانستان دقضیې په اړه یواځې له امریکایانو سره مخامخ خبرې کوو° امریکایان هم رامات شول اودمخامخ خبرو لومړۍ رسمي کتنه د تېراکتوبر دمیاشتې په ۲۰ نېټه په قطر کې ترسره شوه، وروسته بیا په قطر او بیا په اماراتو کې مخامخ خبرې ترسره شوې او دادی بله ناسته به یې بیا په دوحه کې رامنځته کیږي اوله ډېرې واخطایي سره یې مخ کړي که له یوې خوادغو ناستو او سیاسي هلو ځلو دطالبانو موقف خورا دروند کړی او ډېرې سیاسي ګټې یې ترلاسه کړې، څکه چین، روسیې، او ایران هم له طالبانو ملاتړ اعلان کړ، له بل لوري یې په امریکایانو اودکابل په اداره خورا سیاسي فشار واردکړی .

په ورته وخت کې طالبانو دتېر په خلاف په روان ساړه ژمي او واوروکې خپلو بریدونو ته هم زور ورکړی اود هیواد په شمال، شمال ختیځ، شمال لویدیځ او دمرکزي سیمو په ګډون په جنوب ، جنوب ختیځ او جنوب لویدیځ ولایتونو کې پراخ عملیات دوام لري اولکه څنګه چې په خبري رسنیوکې اورو او وینو خورا ډېرې سیمې او امنیتي پوستې یې لاندې کړې دي .

بدخشان، کندز، تخار، بغلان، بلخ، بادغیس، جوزجان، هرات، ارزګان، فراه، کندهار، هلمند او غزنې ولایتونه یې ترسخت نظامي فشار لاندې راوستي له دې سره سره چې ډېرى اربکیان او پولیس پکې وژل کیږي یو زیات شمېر یې طالبانو ته له جګړې پرته تسلمیږي هم او دا لړۍ بنه په زور کې روانه ده .

ښکاري چې په مجموع کې دغرب او په ځانګړي ډول په افغانستان کې نور د دیمکراسۍ زوال راغلی او دغه فریب عوامه نسخه نور له کاره لوېدونکې ده .

ان شاءالله

تعبیر یې کړی ما په ظالمانو به چپه شي
چپه کاکل مې خوب کې دجانان لیدلی دی

## قضاوت

**شیخ علي طنطاوي رحمه الله په عراق پوهنتون کې د ادبیاتو استاذ په توګه مقرر شو. پوهنتون ته له تګ مخکې په لومړۍ ورځ په بغداد ښار کې ډېر ګرځېدلی و، ستړی ستومانه او ظاهري لباس یې ګرد وډ و. ټولګي ته لاړ، هلته بل استاذ په تدریس بوخت و، استاذ ګومان وکړ چې کوم شاګرد دی، ورته یې وویل: ولې صنف ته ناوخته راغلې حیوانه!؟ شیخ طنطاوي ترې ښښنه وغوښته او په صنف کې له شاګردانو سره کښېناست.**

**بیا استاذ شاګردانو ته وویل: نن به تاسو ته زما پرځای د ادبیاتو یو استاذ راځي، علي طنطاوي نومیږي او ډېر ستر ادیب دی، په درسونو کې تنبلي مه کوئ، هسې نه چې د هغه په مخ کې مې پزه راپرې کړئ.**

**بیا استاذ له شاګردانو څخه په درسونو کې پوښتنې کولې، هره پوښتنه به یې شیخ طنطاوي ځوابوله. اخیر ترې استاذ پوښتنه وکړه: شاباس! ډېر تکړه شاګرد یې! نوم دې څه دی؟ هغه ځواب ورکړ: زما نوم (علي طنطاوي) دی.**

**استاذ نږدې وه چې له ډېره غمه بې هوښه شي. شیخ علي طنطاوي رحمه الله چې کله دا کیسه کوله ویل یې، چې هیڅکله د چا د ظاهري بڼې په اساس د هغوی په اړه قضاوت مه کوئ.**



# آه! دعلومو هغه ځلاند کهکشان ....

## استاد العلماء مولانا حمد الله جان هم دهسکه پريوت ... !

ابوظهير شمس

ستر مفسر، نوميالی محدث او وتلی مناظر عالم مولانا حمد الله جان داجوي( ډاگۍ بابا) چې دځه وخت راهيسې ناروغه و او دپيښور په يو روغتون کې ترتداوي لاندې واو ناروغې يې مسلسل زياتيده بالاخر دهفتې په ورځ دجنوري په ۱۲مه نيټه (۲۰۱۹ ز) داخرت په سفر د تللې قافلې سره يوځای شو انا لله وانا اليه راجعون

دشک پرته استاد المحدثين حضرت مولانا حمد الله جان اوس مهال نه يواځې په پاکستان او افغانستان کې بلکې د هند او منځنۍ اسيا پر ګډون په ټوله سيمه کې يوبې جوړې مفسر، محدث ، د اسلامي علومواو فنونو داسمان يوځليدونکی کهکشان و مرحوم په يو وخت جامع او مانع شخصيت و چې په تفسير، حديث، فقه، اصول فقه، منطق، فلسفه،مناظره، علم کلام، نحو وصرف، شعرو ادب ... يعنې هم په اليه او هم په عاليه علومو او فنونو کې يې بشپړ او کامل مهارت درلود او په دې علاوه دتصوف او روحانيت په ميدان کې هم په څلور واړو طريقو کې مجاز و او دعملياتو دفن ماهر و.

مرحوم په ۱۹۱۴ز کې کال کې زيږيدلی و، چې په دې حساب يې ټول عمر يوسل پنځه کاله راځي، دمعتبرليکوال اوعالم مولانا ابن الحسن عباسي په وينا: اوس مهال دعمر او علم دواړو له پلوه په هند، پاکستان او افغانستان کې هيڅ عالم هم دمولانا حمد الله جان ( ډاگۍ بابا) سره برابر او سيال نه و.

### زده کړې:

استا د العلماءمولانا حمد الله جان رَحِمَهُ ٱللَّهُ دوخت او زمانې له مشهورو او جيدو علماوو نه ديني علوم لوستي وو او په دې توګه خدای ښښلی دډيرو عالي سندونو او نسبتونوامين ګڼل کيده، زده کړې يې په پيل کې يې ترپنځم ټولګي ښوونځي خپل کلي ( ډاگۍ) ته څېرمه په يارحسين کې لوستی و او بيا دديني علومو ابتدائي کتابونه يې دخپل پلار علامه عبد الحيکم رح او دخپل تره مولانا محمد صديق ( دمبيذي محشي) څخه ويلي وو او هغوی دواړه د دارلعلوم ديوبند فاضلان اودحضرت شيخ الهند مولانا محمود الحسن ديوبندي رَحِمَهُ ٱللَّهُ شاگردان او دحضرت علامه انورشاه کشميري رَحِمَهُ ٱللَّهُ دسبق ملګري وو او دنورو مروجه فنونو کتابونه يې داکوړه خټک [دارالعلوم حقانيې] دپخواني شيخ الحديث او ستر فقيه مولانا مفتي محمد فريد رَحِمَهُ ٱللَّهُ دپلار حضرت علامه مولانا حبيب الله رح په زروبی او مردان کې ويلي وو ديادونې وړده چې مولانا حبيب الله زروبوي رح د ډاگۍ بابا دپلار ( علامه عبد الحکيم) او دتره ( مولانا محمد صديق) يي شاګردو.

بيا د نورو سبقونو ويلو په غرض دارالعلوم ديوبند ته لاړ، هلته دځه وخت تيرولو وروسته دسهارنپور( هند) مظاهر العلوم ته لاړ، چيرته يې چې درې کاله تير کړل او په ۱۳۶۶ هق( ۱۹۴۷ز) کې دسهارنپور (مظاهر العلوم) څخه فارغ شو ، په مظاهر العلوم کې يې د بخاري شريف لومړی جلد او سنن ابو داؤد يې له برکة العصر- ريحانة الهند شيخ الحديث مولانا محمد زکريا رَحِمَهُ ٱللَّهُ ، بخاري شريف دوهم جلد دمولانا عبد الطيف مظفرنگري نه ، سنن نسائي له مولانا اسعد الله او ترمذي شريف او معانی الاثار دوخت د ستر ولي اولوی محدث مولانا عبد الرحمان کامل پوري( کيملپوري) او صحيح مسلم او څه برخه دابن ماجا او دواړه موطائين يې د مولا نا منظوراحمد رَحِمَهُ ٱللَّهُ لوستي وو.

حضرت شيخ الحديث مولانا محمد زکريا(مهاجر مدني) رَحِمَهُ ٱللَّهُ ته دهند علماء د ستر محدثانه شان او علمي مقام په

احترام ( دبركة العصر، ريحانة الهند القاب وصفات كاروي) رښتيا هم هغه دهند له نيمې وچې نيولې ترعربي هيوادو او آ ن ترافريقا ددعوت وعزيمت دقافلې هغه سر لارى محدث، عالم او روحاني مرشد و چې داسلام دبل مشال دلا روښانه ساتلو لپاره يې شپه ورځ په ځان يو کړې وه او دزمانې د جهل او جبر دتيزو او تونډو سيليو سره يې په ځوانمردانه همت مقابله وکړه او دعلم ،تدريس ، تبليغ و ارشاد په لاره کې يې بيدريغه سترياوې وګاللې ،الله تعالى ورته دنورو علومو او فنونو سربيره په نبوي احاديثو کې دومره جامعيت ، کمال او پکې خاص شغل ورکړى و چې [شيخ الحديث ] لقب يې داسم ګرامي نه جزء بلکې دهغه قايمقام ګرځيدلى و، دهندوستان او پاکستان په علمي او ديني حلقو کې چې کله د[حضرت شيخ الحديث ] لفظ دچا له خولې وزي، فوراً ذهن دنوموړي دذات په لوردرومي، او حقيقت همدا دى که په حقيقي او واقعي توګه څوک دشيخ الحديث دلقب مستحق او وړ و؛ هغه دشيخ الحديث مولانا محمد زکريا ( مهاجر مدني) رَحِمَهُ ٱللَّهُ ذات اقدس و، مولانا حمد الله جان داجوي رَحِمَهُ ٱللَّهُ دهمدي ممتاز محدث دعلمي او روحاني معارفو امين او وارث و او هم د هغه دفيضان او معارفو ورروستى يادګاراو نښان و او دژوند ترپايه يې د خپل شيخ دتشريحاتو سره سم دعظيم الشان قرآن تفسير او دنبوي احاديثو تدريس دژوندانه يواځينى خوږه مشغله ګرځولې وه

او حضرت مولانا عبد الرحمان کامل پوري ( کيملپوري) رَحِمَهُ ٱللَّهُ هم يوه لويه علمي هسته او دهند دنيمې وچې هغه ممتاز محدث و،چې حکيم الامت مولانا محمد اشرف علي تهانوي رَحِمَهُ ٱللَّهُ په غياب کې مجاز او خپل خليفه ګرځولى و کله چې يې په غياب کې ورته دخلافت سند واستاوه، مولانا اشرف علي رَحِمَهُ ٱللَّهُ ته يې وليکل :حضرت! ما خو لا بيعت ندى کړى؛ نو خلافت مو څنګه راکړ؟ په ځواب مولانا اشرف علي تنهانوي رَحِمَهُ ٱللَّهُ ورته وليکل [زما په نزد اهليت شرط دى بيعت نه؛] په تاکې اهليت شته همدا دخلافت لپاره کفايت کوي؛ نوموړى اصلاً داټک ضلعې دمولانا نصير الدين غورغشتوي رَحِمَهُ ٱللَّهُ سيمې ( غورغشتو )ته څيرمه د بهبودې سيمې پښتون عالم و، چې د محدث العصرمولانا محمد يوسف بنوري رَحِمَهُ ٱللَّهُ دوفات وروسته دهغه دځاى ناستي او علمي وارث مولانا مفتي احمد الرحمان او دپيښور صدربازار دجامعه تعليم القرآن دپخواني مهتمم مولانا قاري سعيد الرحمان پلار و او دپنجاب دجمعيت داوسني امير مولانا ډاکټر عتيق الرحمان نيکه و، مولانا حمد الله جان رَحِمَهُ ٱللَّهُ له هغه ترمذي شريف او شرح معاني ا لاثار لوستي وو.

ډاګى بابا رَحِمَهُ ٱللَّهُ چې کله دمظاهر العلوم څخه فارغ شو، دمظاهر ا العلوم ديادو استادانو رايه داوه چې نوموړى بايد هم هلته مدرس پاته، شي خو داچې دغه کال ( ١٩٤٧ز) له هندوستانه دانګريزي ښکېلاک داشغال په پاى ته رسيدو پخواني هندوستان په دوه جلاهيوادونو ( پاکستان او هند) وويشل شو ،په دې وجه دواړو غاړوته تګ راتګ کې مشکل و، ډاګى بابا هغوى ته په عذر ويلو خپلې پلارنى سيمې ډاګى ته راغى او دلته دخپل پلار ( علامه عبد الحکيم او تره مولانا محمدصديق (صاحب محشي-ميبذي) په ديني درسګاه کې يې درس و تدريس پيل کړ او دتدريس په دوران کې يې مختلف علوم اوفنون تدريس کړل اوتروفات پخپل کلي ( ډاګى) کې دتدريس سلسله جاري ساتلې وه ، دګنو نورو مدرسو او جامعاتو لخوا دبيا بيا دعوت باوجود دخپل کلي څخه بيرون لاړنشو يواځې هغه مهال چې کله په افغانستان کې دطالبانو داسلامي تحريک لخوا د هيواد پلازمينه کابل فتح شو او اسلامي امارت قائم شو دامارت دپوهنې د وزير مولوي امير خان متقي صاحب په زيات کوښښ او اصرار يې کابل ته دهغه بلنه او منله او په ( جامعه فاروقيه) کې يې دشيخ الحديث په حيث لويه دوره شروع کړه، په دغه موده کې هم ترې په زرګونو علماوو او طالبانو استفاده وکړه او ترهغه وخت پورې په کابل کې يې تدريس دوام چې امريکا په افغانستان ويرغل وکړ اودامريکا دبريدونو او حملو وروسته هم ترڅو ورځو په جامعه فاروقيه کې پاته و او خپل تدريس روان ساتلى و

ډاګى مولانا صاحب هرکال دلويې دورې نه علاوه په کال کې ځلوېښت ورځې دعظيم الشان قرآن دتفسير دوره هم کوله، چې دشعبان ١٥نه به درمضان تر٢٥ روانه وه،اوپه هغه کې به په لوى شمير کې بالفعل مدرسينو علماوو ګډون کاوه،نو ويلى شو چې ډاګى بابا يو جامع علمي شخصيت و چې هم مفسر-و او هم محدث، هم فقيه هم او هم مناظر ، په منقولاتو کې هم امام و او په معقولاتو کې هم؛ چې دعلمي زوال په دې زمانه کې شايد په لري او نيږدې هيوادو کې له دې پلوه ورسره بل څوک برابر نه و

دیني مفکر او شیخ الحدیث مولانا زاهد الراشدي په وینا: مولانا حمد الله جان رَحِمَهُ ٱللَّهُ یو داسې رښتنی جامع عالم و چې یوځل دسوونو علماوو په یوه مجمع او غونډه کې داسلامي معشیاتو په موضوع یې دومره جامع ، مدلل او بامعنی تقریر وکړ، چې په اوریدو سره یې زه دومره خوښ شوم او په لومړي ځل راته داهم جوته شوه چې دعلامه شمس الحق افغاني رَحِمَهُ ٱللَّهُ ،مولانا مفتي محمود رَحِمَهُ ٱللَّهُ او مولانا مفتي محمد تقي عثماني مدظله نه وروسته مولانا حمد الله جان هغه مشر لومړی دیني عالم دی دنورو علومو ترڅنګ د اسلامي معاشیاتو په فن هم مکمل عبور لري، دتقریر وروسته مې ورته وویل: حضرت ستاسو عمومي تعارف خو داختلافي مسائلو په اړه دیردی؛ خوشکر دی دا خو ته زموږ دلین سرلاری او رهبر هم یې!! موسکی شو او دخپل یو معاصر نوم یې یاد کړ، چې دا خو هغه زه په ځینو مسائلو کې ښکېل کړم، کنه زما خپل ذوق هم دادی

دمولانا حمد الله جان (ډاګی بابا) یوه بله ځانګړتیا داوه چې مرحوم د افغاني علماوو او طالبانو سره ډیره د خلوص او شفقت نه ډکه راشه درشه درلوده او هم د افغاني علماوو او طالبانو ډیر دروند اکثریت دهغه بالذات شاګردان دي، په دې وجه یې دپاکستانیانو څخه دافغاني علمي حلقو دننه زیات احترام، شهرت او پیژندګلوي درلوده، داسلامي امارت له دوري وړاندې دهجرت په دیار کې افغاني طالبانو د نیږدي ټولو ولایتونو په سطحه داهلسنت والجماعت په نوم جلا، جلا منظمې جوړې کړې وې او د هرکال په پای کې به دهر ولایت طالبانوخامخا په یو کیمپ یا مدرسه کې دخپل ولایت دطالبانو کلنۍ غونډه جوړوله چې په هغو غونډو کې مشرمیلمه عالم او ویناوال به ډاګی مولانا صاحب و ، چې دهر ولایت طالبانو به خامخا ورته دعوت ورکاوه او مولانا صاحب به هم په ورین تندي مانه،او دخپلو ټولو مصروفیتونو باوجود به یې دافغاني طالبانو جلسو او پرګرامونو ته وخت ورکاوه او پکې ګډون یې کاوه ، په ورته توګه کله چې د اسلامي امارت دوره راغله ډاګی مولانا صاحب دامارت دکلکو ملاتړکوونکو څخه و ، داسلامي امارت مشرانو ورته زیات احترام درلود، څنګه چې دمرحوم دوفات په اړه دافغانستان اسلامي امارت په تعزیت لیک کې هم دمرحوم ډاګی بابا په مړینه د زیاتې خواشینۍ ښودو او د علمي او روحاني خدمتونو د ستایلوترڅنګ یې په دي هم اعتراف شوی دی چې هغه مرحوم دافغانستان داسلامي دحقې داعیې کلک ملاتړکوونکی عالم و

کتابونه : پښتو یې خپله مورنۍ ژبه وه، خو په هغې علاوه په عربي، فارسي او اردو باندې یې هم مکمل عبور لاره، په خاصه توګه عربي ژبه یې دتصنیف او تالیف ژبه وه او ټول کتابونه یې په عربي ژبه کې لیکلي: البصائر لمنکر التوسل بأهل المقابر، کتاب التوحید، مناظره حرم، معدن الاسرار او دمظاهر القرآن په نوم تفسیر چې لا تراوسه چاپ ندی

ډاګی بابا دوه ودونه کړي وو او د دواړو څخه یې څلور لونه او څلور ځامن وو، په ځامنو کې یې پروفیسر-فضل الله چې یوښه ادیب، خطیب، عالم وعارف و په ځوانۍ کې وفات شوی دوهم مولانا لطف الله څوک چې دمدرسې ناظم تعلیمات دی ، دریم ډاکټر انعام الله خان څلورم اشفاق الله خان چې دایکسپریس په نوم دیومیډیا یې ګروپ مشرې کوي

داچې مولانا حمد الله جان صاحب ته الله تعالی څه باندې سل کاله عمر ورکړ او په دغه ټوله موده کې الله تعالی تري په زرګونو علماوو ته علمي فیض په نصیب کړ، څوک چې اوس مهال دنړۍ په مختلفو برخو کې په مختلفو برخو کې په دیني او علمي خدمتونو بوخت دي کوم چې دمرحوم لپاره صدقه جاریه دي، دوفات دخبر په اوریدو یې دهغوی ټولو سترګې په اوښکو نمجنې شوې په جنازه کې دلکونو خلکو څپڅپاند سمندر وښوده چې مرحوم څومره دالله تعالی دبنده ګانو په زړونو کې ځای درلود او مسلمانان ، علماء او طالبان ورباندې څومره مین ول بدون شک که دتورخم په پوله دتګ راتګ مشکلات نه وای خنډ او دپخواپشان ازادانه تګ راتګ اوس هم کیدای؛ دډاګی مولانا صاحب جنازې ته به له افغانستانه هم په لوی شمیر خلک راغلي وو، دمرحوم دځوی اشفاق الله خان په وینا: چې دوی دجنازې لپاره شپیته جریبه زمکه برابره کړې وه چې پکې داووه لکه شاوخواخلک ځائیدو ګنجایش و خو هغه هم پوره نشوه او پکې جنازې ته راغلي خلک ځای نشول .... په پای کې دادعاء کوو چې الله تعالی دي دمرحوم درجات لوړ کړي او دنوموړي، شاګردانو، عقیدتمندو او کورنۍ ته دي دجمیل صبر توفیق ورکړي آمین یارب العالمین



الاماره.. ورځنی تحلیل

# مذاکرات په فشارونو نه کامیابیږي...!!

له هغه وروسته چې د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ له اسلامي امارت سره د مخامخ تفاهم پریکړه کړې، ځانګړي سفیر خلیلزاد يې څو ځله د اسلامي امارت له سیاسي استاځو سره په بیلابیلو هیوادونو کې غونډې کړي دي. د اسلامي امارت استاځو هغوی ته خپله اجنډا وړاندې کړې چې د اشغال خاتمه او په راتلونکي کې له افغانستانه د امریکا د اندیښنو په باب هغوی ته ډاډ ورکول يې آساسي ټکي دي، او ترڅنګ يې اړوند موضوعات هم تر بحث لاندې راغلي دي.

له اشغالګر لوري سره مذاکرات، لکه څنګه چې يې اسلامي امارت همیشه د یو غوره آپشن په ډول وړاندیز کړی؛ له ښه مرغه چې پس له ۱۷ کالو امریکا هم دې نتیجې ته ورسیده او زړه نا زړه يې د جګړې پرځای د تفاهم لارې ته مخه کړه.

مګر متاسفانه چې په دې برخه کې هم د امریکا کړه وړه، له مذاکراتي پروسې سره د هغوی سطحي چلند او ناسنجیده ګي جوته وي.

د بنسټیزو مسایلو د حل کولو پرځای پر فروعي خبرو بحث، خصوصاً پر هغو مسایلو ترکیز کول چې هغه اصلاً له بهرني اړخ سره هیڅ تړاو نلري؛ هیڅکله د افغانستان روانه معضله نشي ـ حل کولای. د دوی دا ډول هڅې څرګندوي چې دوی غواړي بیا هم مداخلې ته دوام ورکړي او د مذاکراتو په پایله کې هم د اشغال جنګي اهداف خوندي کړي. چې دا کار ښايي ستونزه نوره هم پیچلې کړي.

دویم دا چې نښې دا ښيي چې امریکايي لوري په دې هڅه کې دي چې د معضلې د بنسټیز حل ور اخوا د خپلې موخې د ترلاسه کولو لپاره له اسلامي هیوادونو نه د فشار کارولو استفاده کوي، او داسې ښکاري چې هغوی د فشاري ابزارو په ډول کارول کیږي، یا خو د امریکايي اړخ نه هغوی ته د فشار اچولو ټاسک ورکول شوی او یا دا چې د امریکايي پلاوي له کړو وړو نه په استفادې هغوی د فشار اچولو په وسیله، خپل اهداف تعقیبوي.

بل دا چې د طرفینو د مذاکراتي ټیمونو له توافق پرته ځیني خبري تبلیغول او مطبوعاتي کول هم دا پروسه له خنډ سره مخ کولای شي. په ابوظبي کې له غونډې وروسته د سعودي د غونډې دایریدلو په اړه د طرفینو له توافق پرته، د هغې غونډې د جوړیدو شایعه د یوې بیلګې په ډول یادولای شو.

اسلامي امارت ښودلې چې په صادقانه ډول د افغانستان د اشغال د خاتمې او په هیواد کې د سوله ایز ژوند د تأمین په غرض هم د جنګ او هم د سولې میدان ته را وړاندې شوی، ترڅو چې د افغانستان خپلواکي تر تهدید لاندې وي هیڅکله به پر یوه نقطه هم معاملې ته تیار نشي او نه به د چا د فشارونو په پایله کې د سپیڅلي جهاد او د کامل استقلال په لاره کې د ورکړل شویو قربانیو بې قدري وکړي.

پکار دا ده چې د امریکا واکمن دافغانستان دمسئلې په عمق او د افغان ولس د غوښتنو په حقیقت ځان پوه کړي او په رڼا کې يې خپل مذاکراتي پلاوی له فروعي او غیرمربوطه کړنو څخه منع او د موضوع د آساسي حل لوري ته يې متوجه کړي او دا ور وفهموي چې داسلامي امارت قیادت او مذاکراتي ټیم چې څلويښت کاله دانقلابونو په بهیر کې تجربه شوي د تیر ایستلو خام فکر ونه کړي.

د ولسمشر ټرمپ څرګندوني ښيي چې هغه په دې فکر کې دی چې خپل امريکايي ولس د داسي اشغال له جانبې عوارضو او اضرارو وژغوري چې له املـه يې د افغان ولس په ګډون ډېرى نورملتونه هم کړولي او بالاخره به د امريکا په تباهي تماميږي.

پکار دا ده چې مذاکراتي پلاوى يې هم دا موقع ضايع نکړي او دمذاکراتو ميز ته داسلامي امارت له سنجيده او صادقانه را وړاندي کېدلو نه ښه استفاده وکړي او د ټرمپ له لوري د ورته ټاکل شوي مسير نه انحراف ونکړي، چې دا هيڅکله نه د امريکا او نه هم د افغانستان پخير تماميداى شي.

پاى

# ټيکنالوژي او انسانيت!!!

نيو يارک پوسټ چې يؤه معتبره امريکايي اداره ده،ددى ادارې په ديوال باندې پرون يؤ لوڅ پوسټ ځوړند و، پوسټ د يؤ داسې نفر د ژوند کېسه راخيستې چې خپل جنسي خواهش له يؤى لانزکې پوره کوي او خپله ريښتنى ښځه يې پريښى.

نيو يارک پوسټ:يؤ نفر سره په لوڅ حالت کې د يؤى لوڅې پلاستيکي لانزکې انځور ورکړې او بيا يې ورسره ليکلي چې نوموړې وايي چې زما سيکسي لانزکه زما د ريښتينې کوروداني نه تر ډېره ښه ده.

پوسټ زياته کړې چې په نږدې کې به ډېر نارينه په دى کار لاس پورى کړي مطلب ( د ښځو په ځاى دى پلاستيکي لانزکو سره ژوند او جنسي اړيکه جوړول.(

هسې داسې مې فکر کولو چې د ټيکنالوژي په دى ګرداب کې به موږ آخر تر کومه حده لاړ شو؟

بعضې خلکو خو لکه تسبيح چې لاس کې نيولي وي پرمختګ پرمختګ ذکر کوي ايا ستاسې له پرمختګ نه دا پرمختګ مطلب دى؟

بعضو ليکلي نړى چېرته ورسېده او موږ لا چېرته پاتې يو؟

اى په قسم که دا ستاسې پرمختګ وي نو له دى وحشي ځناورو خو موږ سل درجه ښهٔ يو، سبا به دى ښځې هم د پلاستيکي سړي انځور پوسټ کړې وي او ورسره به يې ليکلي وي چې نړى چېرته لاړه او موږ لا چيرته پاتې يو مطلب دا به خاوند ته کوتڅندېنه وي.

اخ زما يتيم يتيم اسلامه دا ستا ښکلي ښکلي قوانين او مقررات ولې د رسنيو په مخ داسې ورک دي.

ابو خالد



# کابل رژیم له امریکایانو پرته

## خپل سیوری په اوبو کې ویني!!

لیکوال: عاکف مهاجر



د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ پدې وروستیو کې له سوریې څخه د امریکایي عسکرو د وتلو پریکړه وکړه چې لدې سره سم یو شمیر امریکایي رسنیو د سپینې ماڼۍ د سرچینو په حواله داسې راپورونه نشر کړل چې ټرمپ پدې فکر کې دی چې له افغانستان څخه امریکایي عسکر هم وباسي او ډیر زر به د نیمایي عسکرو د وتلو پریکړه وکړي.

د یادو اوازو وروسته د جانکیري په لاس کینول شوې نانځکي وارخطا او دا یې لدوی سره ستره جفا وبلله چې دوی دلته پریږدي او امریکایان خپلې کډې باروي.

د ګډ حکومت مشر وارخطا او په خپلو لیکو کې د تبدیلي په هڅو کې شو تر څو د طالب په وړاندې له دوی سره په دښمني کې مخکښه څېرې راوړاندې کړي چې همداسې یې وکړل او د کورنیو او دفاع وزارتونو ته یې امرالله ناصالح او اسدالله خالد راوړاندې کړل څوک چې د طالبانو سرسخته دښمنان یادیږي، خو یو ځل تر مخ یې هم طالبانو ته امتحان ورکړی او دواړه یې پرمخ رانسکور کړي چې اسدالله خالد تر اوسه هم له مردانګي خلاص او په نیمه پایډل ګرزي.

ټرمپ له دغو اوازو وروسته لږ نور هم وړاندې لاړ او د ۲۰۱۸م کال په وروستی ورځ یې له افغانستان څخه د عسکرو د وتلو شین څراغ نور هم روښانه کړ، خو د نوي میلادي کال له رابریدو سره سم یې په ښکاره ټکو و ویل روسیې پر افغانستان یرغل وکړ او دایې حق وو خو افغانستان له اتحاد شوروي روسیه جوړه کړه مونږ له زرګونه کیلومتره لرې هلته څه کوو نږدې هیوادونه دې هلته جګړه وکړي، مونږ باید له هغه ځای راووځو.

د غني په مشرۍ کاواکه اداره وارخطا شوه چې اوس یې د ولس منګولې ضرور ګریوان ته رسیدونکې دي نو یې د امریکا د ولسمشر د خبرو په غبرګون کې په لړزیدلو لاسونو او ریږدیدلو زامو یوه اعلامیه خپره کړه چې امریکا باید سپیناوی وکړي تر څو د روسیې یرغل په حق نه بلکې ناحقه وو، ځکه دوی دا فکر کولو چې د روسانو یرغل ۹۰ په سلو کې افغانان ناروا بولي او د هغوی ماتول خپل ویاړ ګڼي نو فکر یې وکړ چې همدا یې وخت دی.

غني باید پوه شي چې لکه څنګه عطا نور ویل مونږ امریکا د پیپسي بوتلو په څیر استعمال کړو خوراک یې راباندې هضم کړ وروسته یې د تشو بوتلو په څیر وغورځولو دی به هم همداسې وغورځوي.

هغه د امریکا او ملګرو له لوري پر افغان ولس هر ظلم په چپه خوله د دې لپاره وزغملو تر څو یې بادار امریکا خوشاله او ورته وفادار معرفي شي چې آن د امریکایي عسکرو له لوري یې

پر خپلو عسکرو درنو بمونو اوریدل هم وزغمل او د هغو په وراندې هم چوپه خوله پاته شو، خو بادار تل خپلو گټو ته گوري او غلام ورته هیڅ ارزښت نلري لکه د پیپسي بوتل په څیر یې استعمالوي نور یې د غني په واک او افغانستان کې پاته کیدلو کې گټې نشته د غني گټې ورته هیڅ مطرح ندي، نو همداسې به یې پریږدي.

کابل رژیم ځکه وارخطا دی چې له امریکایانو پرته دوی خپل سیوری په اوبو کې وینې چې څومره دي، طالبان حتمي راتلونکي دي هغوی دغه هیواد کې اسلامي نظام غواړي او هغه د دوی په زیان دی ځکه د دوی ناروا گټې پکې خوندي ندي، شراب او کباب ورته نه رسیږي او د کړیو جنایتونو حساب ورسره کیږي، خو دوی باید پوه شي چې نور یې د واک د پای وخت رارسیدلی او ډیر زر به یې دغه تخت او بخت رانسکور شي لکه د ډاکتر نجیب په څیر به یې د عدل رسۍ غاړې ته ولویږي.

# په شکست کې شرم نسته

## مگر ستر شرم دا دئ چې خپل خلک وغولو!!

امریکایي پروفیسر ډېنې سجورسن یو امریکایي فوجي افسر دئ. هغه په افغانستان او عراق کې خدمت کړی دئ، او د تاریخ استاد هم دئ. پروفسور ډېنې د نومبر پر ۳۰ په (د اریکن کانسریوټیف) مجله کې لیکي په امریکا کې یوه خبره ډېره مشهوره ده، او هغه دا چې:«امریکا هیڅکله په نظامي لحاظ شکست نه خوري، په تېره بیا په درېیمه نړۍ کې.» همدا وجه ده چې زموږ ته ویل کېږي چې امریکا ښایي په افغانستان کې په سیاسي لحاظ ماته وخوري، او هغه هم د لیبرالانو او د جنگ د مخالفانو په سبب .

مگر دا مقوله له سره غلطه ده، ځکه موږ به په افغانستان کې په نظامي لحاظ ماته وخورو. په داسې حال کې چې زموږ جنگ په افغانستان کې ۱۸ کلن کېږي، موږ د څرگندې نظامي ماتې سره مخامخ یو. نن سبا، طالبان تر بل هر وخت زیاتې سیمې تر ولکې لاندې کړې دي. سږ کال به د افغانانو تلفات تر ۲۰۰۰۰ (شلو زرو) واوړي. د افغان د امنیتي قواوو تلفات جبران ناپذیره دي. یوازې په ۲۰۱۷ کې، لس زره افغان امنیتي عسکر وژل سوي ول. او په ۲۰۱۸ کې، امنیتي شرایط تر پخوا ډېر خراب سوي دي. که څه هم امریکا په ۲۰۱۸ کې تر بل هر کال زیات بمونه اچولي دي، خو داسې ښکاري چې د راتلونکې څرگندې ماتې مخه نه سي نیولای. بلخوا، د امریکایي عسکرو د تلفاتو گراف هم جگ سوی دئ .

له دې ټولو کوښښونو سره سره، څه چې موږ د افغانستان په جنگ کې حاصل کړ، یو خونړین بن بست دئ. او بالاخره انجام ئې یو نظامي شکست دئ .

زه پدې اعتراف کوم چې د دغو واقعیتونو د لیکو په وجه به پر ما باندې زیات انتقادونه وسي، خو زه د دې انتقادنو پروا چندان نه لرم. ځکه دا نقادان به هغه خلگ وي چې زړې مفکورې ئې زخمي زړونه ور تسل کوي. او مدام د امریکا د نه ماتیدو نظریه په سر کې روزي. کله چې همدا خلگ لدې نظر سره مخامخ سي چې د افغانستان جنگ نظامي حل نه لري، او د امریکا شکست رانژدې سوی دئ، دا واقعیتونه د هغوی دماغونه ور پرېشانه کوي، او د هغوی لپاره دا خبرې د مرگ گوزار دئ .

موږ باید واقعبین واوسو، او د امریکا له اوږده جنگه یو ریالیستک درک ولرو. ځکه یا به واشنگټن بیا دېته زړه ښه کوي چې یو لک امریکایي عسکر افغانستان ته استوي، څو هلته د راتلونکې ماتې مخه ونیسي، او یا به دا منو چې موږ مات سوي یو .

واقعیت دا دئ چې پدې ۱۸ کالو کې، د امریکا فوج خپل ټول زور او قوت و ازمویې. موږ د شپې چاپې ووهلې. بې شماره بمونه مو واچول. زیات عسکر مو ور واستول. او سرچ مو عملي کړ. لنډه دا چې موږ خپل ټول زور ووهی. خو هیڅ شی موثر واقع نه سو، او هیڅ اقدام کافي نه وو .

اصلي خبره دا ده چې په کافي اندازه افغانان له طالبانو سره مرسته کوي، او زیاتره ئې له امریکایي اشغال څخه کرکه لري. په بل عبارت، افغانان پدې توانېدلي دي چې زموږ سره وجنگېږي، او دا جنگ زموږ لپاره نه گټونکی کړي .

په پای کې، دا باید په ډاگه ووایم چې په شکست کې شرم نسته. مگر ستر شرم دا دئ چې خپل خلگ وغولو، او حقیقت ترې پټ کړو. دا کار د امریکا فوج وروسته له ویتنام څخه وکړ، او زما ببره دا ده چې، هغوی همدا کار اوس بیا کوی .

میوند جمال

# که ډموکراسي دحل لاره وای!

که ډموکراسي حل لاره وای او امنیت بکې خوندي کیدای دا سږکال به په بریتانیا کې د غلا ۶۸۹۹۸ دوسیې نه ثبتیدې.

که ډموکراسي د حل لاره وه سږ کال به د بریتانیا په کوڅو کې په چاقوانو د وهلو ۳۷۴۴۳ واقعې نه ثبتیدې.

که ډموکراسي کې ښځې خوندی وای سږکال به یواځې په امریکا کې د زنا بالجبر ۱۳۸۰۴۵ واقعې نه ثبتیدې.

که ډموکراسي کې د امنیت حل وای د دې کال تر ستمبر به په بریتانیا کې د توپک یا تمانچې په زور د غلا ۶۶۹۴ واقعې نه ثبتیدې.

او که ډموکراسي د حل لاره وای یواځې په ۲۰۱۸ کې به په بریتانیا کې د ۵،۳ ملیونه جرمونه کیدل نه ثبتیدل .

بیا هم که په ډموکراسي امنیت راتلای امریکا کې به د هر مکتب او لیسې په لکونو شاګردانو د ځانونو سره وسلې نه کرځولې؟

که ډموکراسي د حل لاره وای نو په هره هفته به د امریکا په یوه نه یو مکتب کې محصلینو ډزې نه کولې او محصلین به یې نه وژل .

که په ډموکراسي د امنیت حل وای یواځې په ۲۰۱۷ کې به په امریکا کې ۱۷۲۸۴ قتلونه نه کیدل

که په ډموکراسي امنیت راتلای نو د اروپا او امریکا دکاونونو ته به مسلح خلک نه ور ننوتل او چور کول به یې نه؟

که په ډموکراسي امنیت راتلای په اروپا او امریکا کې به خلک په نیمه شپه نه ویریدل.

که په ډموکراسي کې د ښځو عفتونه خوندي وای نو د امریکا په هر پنځو ښځو کې به په یوې جنسي تیری نه کیده؟

که په ډموکراسي کې د ښځو عفتونه خوندي وای نو د اروپا مخکښ هیوادونو بریتانیا، فرانسې، سویډن او نورو په هرو ۷ ښځو کې به یوه ښځه باندې جنسي تیری نه کیده.

که په ډموکراسي کې د ښځو حقوق خوندي وای اروپا ته هر کال ۷۰۰۰۰ ښځې د جنسي تسکین لپاره نه چاقاق کیدلې.

که په ډموکراسي کې ماشومان او ښځې خوندي وای نو هر کال به امریکا ته تر ۵۰۰۰۰ ښځې او وړې انجونې نه قاچاق کیدلی؟

که په ډموکراسي کې د ښځو د مساوات خبره رښتیا وای نو د نړۍ مخکښې اروپا کې به د ښځو تنخواه د سړیو نه دوه چنده کمه نه وای.

که په ډموکراسي کې د ښځو مساوات کیدای نو د نړۍ مخکښه او زوروره امریکا کې به ښځې د سړیو نه دوه چنده په لاندې درجه کې نه وای.

که بیا هم په ډموکراسي کیدای نو یو تور پوستي به تر اوسه په علمي، سائنسي- او ادب کې د نوبل جائزه اخیستې وای.

نو د افغانستان غوندې په لیوانو، زور واکو، غاصبینو، او هم له دین او هم ډموکراسي ته د نا ژمنو کسانو منځ کې دا راګیر هیواد به څه ډموکراسي پلی یا به یې عملي کړي.

یادونه: دلته مې د سر سري مثال په خاطر یواځې په بریتانیا او امریکا کې د کیدونکو غلاؤ، قتل، جنسي تیري، او نورو جرمونو دمره څه را نقل کړي لکه د سیند په اوبو کې چې ستن ډوبه شي او بیا یې را وباسي او د ستن په څوکه چې کومې اوبه پاتې شي د هغې اوبه هومره مې تاسو ته وړاندې کړي.



# سر وهو سنګر نیسو!

خبیرنبیل

سرپرست وزیر اسدالله وای څه موده مخکې بیانیه ورکړه چې له دې وروسته به زموږ د خپلو ځواکونو لپاره پخوانی شعار چې ( سر ورکوو، سنګر نـه ورکـوو ) پـه نـوی شـعار ( سر وهـو، سنګر نیسو ) سره بدلوو.

وای پخوا زمانه کې یوه مست لیوه اوریدلی وه چې انسان ډیرتکړه او غیرتمند دی ، څرنګه چې لیوه هم ځان ته یـو څـه ویـل ځکه نو دی هم د انسان د مقـابلې پـه تکـل لـه خـپلې سـوړې را ووتی، لومړی پر چغال پیښ سو او تپوس یې ځیني وکړی چې ته انسان یې؟

هغه ورته وویل چې نه یاره زه انسان نه یم، انسان خـو ډیـر زورور مخلوق دی، وروسته پـر ګیـدړه پیـښ سـو، هغـه ځـواب ورکړی، خلاصه دا چـې د ډیـرو ځـنګلي حیوانـانو څخه پوښـتنه وکـړه، د ټولـو ځـواب منفـي ؤ، آخـر راغلـی پـه ځنګلـه کـې یـو سپینږیری بوډا لرګي وهی لیوه ورته ودریدی ول ته انسان یې؟

هغه ورته وویل چې هـو زه انسـان یـم، لیـوه ورتـه چـې زه مقابله در سره کوم او ستا په پیدا کولو پسې ډیر سرګردانه سـوی یم، انسان ورته وویل چې بالکل زه مقابلې ته تیار یم، خـو زه پـه تا باور نه وینم را څخه و نه تښتې؟ لیـوه ورتـه وویـل چـې سـتا باور څنګه کیږي؟ انسان ورته وویل چـې زه تـا لـومړی پـه دغـه ځنځیر په دغه ونه پسې ترم، بیا مقابله در سره کوم، لیوه ول سمه ده، انسان لیوه کلک په ځنځیر وتـړی، نـو یـې تـبر ورتـه واړوی داسې وډبوی چې پر لاره نسوای تلای، وروسته یې خوشې کړی.

لیوه ولاړی نور لیوان یې را خبر کړه چې زه انسان دغه سې ووهلم، لیوان په ګله ور سره را روان سوه، کله چې انسـان تـه را ورسیدل، انسان و درختي ور څخه وختی، لیوانو ټپي لیوه کښته ودروی، دا نور په ټوپ یو پر بـل د دې لپـاره پورتـه کیـدل چـې انسان ته ځانونه ورسوی، کله چې انسان ته ور نزدې سوه، انسان ناره کړه چې تاسو راکړی هغه زما ځنځیر او تبر، ټپي لیـوه چـې د تبر او ځنځیر نوم واوریدی، ټوپ او منډه یې کړه، ټوله لیـوان یـو په بل پسې را ایله سوه او او د ټپي لیوه د منډو له وجـه یـې پـه منډو یې شروع وکړه.

خالد خانه!

د کومه وختـه چـې امریکایـانو یرغـل شروع کـړی، سـتا د طالب و مقابلې ته ډیره تلوسه وه، د بادارانو د خوشـحالولو لپـاره تا په طالب پسې ډیري منډې وکړې، په غزنی، پکتیکا او کنـدهار کې دې ډیر وحشتونه د خپلو بادارانو په مرسته د دې وجه تر سره کړل چې باداران دې هم پـه ګرمـه وینـه کـول او تـه هـم نسـبتا د انرژۍ ډک وې، خو تا او بادارانو دې نه طالب مات کـړی او نـه مو سنګر ور څخه ونیوی، نن چې دې د بادارانو حوصلـه پـه سره خط کې ده او ته هم د ک و ن ي لخوا ور نیمی سوی یې، نـو پـه دغه ختمه حوصله او بې ک و ن ي بدن به کومه توره وکړې.

هو دومره به سي!

ته هغه لیوه یې چې طالبانو ک و ن ن ه در څخـه ریبلـی ده او خپل هیبت او ډار یې ستا په زړه او کولـو پـه پـوره توګـه در ننویسـتلی دی لکـه د هغـه ټپـي لیـوه لـه وجـه چـې روغ لیـوان وتښتیدل، همداسې به ستاسو جوړ او روغ وحشي لیـوان سـتا د بزدلی او وهم د لاسه میدان خوشي کوي.

ان شاء الله و بنصرته






# سپیڅلې

## او رښتینې مینه

عبدالله "عزام"

مینه د یوې ژورې خواخوږۍ او قوي مهربانۍ نوم دی چې د یو چا سره د مقابل لوري په زړه کې راټوکیږي.

مینه چې خیني خلگ په محبت سره ترې تعبیر کوي، دواړې کلمې له څلورو مفردو حروفو څخه مرکبې دي چې په ښکاره ډیرې ساده او عام فهمه ښکاري او ډېری خلگ ښايي ډېر ژور مفهوم ترې وانه خیستلای شي، له دې امله نه چې مفهوم یې مغلق یا منطقي پېچلتیا لري، بلکې خلگ لکه څومره چې یې لفظ مختصر دی، هغومره یې مفهوم هم لنډ ارزوي، خو! حقیقت دادی چې د مینې مفهوم بې انتهاء ژور او تاریخ یې خورا لرغونی دی چې د آدم علیه السلام له پیدایښت څخه یې پېلامه کیږي او تر هغې ورځې پورې به غځیږي په کومه ورځ چې د دې کائناتو تور او سپین د لوېدیځ له لوري راختونکی لمر سره ښېلوي او لا ښايي له هغه وروسته یې هم آثار وموندل شي.

هو! د خور مینه وه چې قابیل یې د خپل ورور هابیل وژني ته اړ کړ؛ مینې له قیس څخه مجنون جوړ کړ؛ د عبلة د مینې لیونتوب ؤ چې عنتره یې دې اوج ته ورساوه چې د هغې د کور انگړ او دیوالونه به یې مخاطب کړل او ویل به یې:

یا دار عبلة بالجواء تکلمي
وعمي صباحاً دار عبلة واسلمي

او د همدې مینې یا محبت په اړه رسول الله صلی الله علیه وسلم په گنو احادیثو کې ارشاد فرمایلی دی چې په خینو احادیثو کې یې جزوي یادونه ده، کله چې له هغه علیه السلام څخه پوښتنه وشوه چې د چا سره محبت لرې؟

هغه علیه السلام وفرمایل: د عائشې سره. بیا سائل وویل چې په نارینه وو کې د چا سره محبت لرې؟

نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د عائشې د پلار سره. همداراز د حسن، حسین او نورو اهل بیتو سره په خاصه توگه او د صحابه کرامو او خپل امت سره په عامه توگه د محمدرسول الله صلی الله علیه وسلم مینه او محبت درلودل د تاریخ پاڼو ثبت کړي دي. له دې جزوي محبت وووسته رسول الله صلی الله علیه وسلم د محبت او مینې په اړه یوه عامه کلیه قاعده وفرمایل چې:

حُبُّكَ الشيءَ يُعْمِي ويُصِمّ [رواه ابو داؤد]

"د یو شي سره ستا محبت تا هم ړندوي او هم دي کوڼ کوي".

په دې مبارک حدیث کې نبي کریم صلی الله علیه وسلم د مینې او محبت په اړه یوه پرېکنده او غوڅه فیصله کړې ده چې د بني آدم چې د هر نوع شي سره محبت پیدا شي، نو هغه محبت یې بیا دې اوج ته ورسوي چې نه د هغه کوم عیب په نظر ورځي او نه له هغه پرته څه اوري.

محمد بن اسماعیل امیر الصنعاني د جامع الصغیر په شرح التنویر کې تر دې حدیث لاندې لیکي:

(حبك الشيء) عام في كل حيوان وجماد وعرض وجوهر. (يعمي) أي عن معائب ما يحبه أو عن كل شيء سواه إذا تمكن في القلب. (ويصم) عن سماع كل ما ليس في معناه أي يصيره كالأعمى والأصم لا ينتفع بحاستيه.

"د یو شي سره د انسان محبت هغه شی که حیوان، جماد یا عرض او که جوهر وي، هغه چې کله د یو انسان په زړه کې ځای ونیسي نو که په هغه شي کې کوم عیب وي او یا له هغه شي پرته کوم بل شی وي، انسان ترې ړوند شي او نه یې ویني.

)دلته حقیقي ړوندوالی نه دی مراد چې د انسان بصارت له منځه ولاړ شي، بلکي مطلب دادی چې د هغه شي په محبت کې بیا نور هر څه ورته هیڅ ښکاري، داسي حقیر چې ګواکه بیخي یې ویني هم نه چې له دې محبوب شي پرته بل شی شته) او همدا راز انسان کوڼ هم شي چې له هغه شي پرته یا کوم چې د هغه په معنی نه وي، بیخي اوري هم نه او له دواړو حسونو بصر او سمع څخه بیا کما حقه استفاده نشي کولای".

د مینې د عام مفهوم او تعبیر له پېژندلو وروسته اوس باید پوه شو چې په دنیا کې دوه ډوله مینه ترسره کیږي، یوه حقیقي مینه بلل کیږي او بله د مجازي مینې یا محبت په نامه پېژندل کیږي. د دې دواړو ډولونو لنډه او اسانه پېژندنه داسي کولای شو چې هر هغه شی یا کار چې انسان الله تعالی ته نژدې کوي او د هغه رضا پکي نغښتې وي حقیقي مینه بلل کیږي، او له دې پرته ټوله مجازي مینه بلل کیږي او له دې لنډي پېژندني وروسته ښایي په پورتنیو ټکو کې بیان شوي د مینې ځیني مثالونه مو هم یو له بل څخه بېل کړي وي چې کوم یو په کومه څانګه کې داخلیږي.

اصل او سپېڅلې مینه حقیقي مینه وي او همدغه د انسان د نېک بختی او سعادت ضامنه او د الله تعالی تر رضا پوري رسونکې وي. حقیقي مینه دومره سپېڅلې او د عظمت په پلوشو کې نغښتې وي چې څښتن یې په هر حال خپل مقصودي منزل ته ځان رسوي او په هر قیمت یې ترلاسه کوي، د دنیا هیڅ شی یې په مخ کې خنډ نشي ـ ګرځېدلای، د هغه لپاره د مال، کور جایداد، اولاد تر داسي چې تر ځان هم ورته تیر وي. د دې بې شمېره بیلګې مونږ په تاریخ کې لیدلای شو او د صوفیانو یا تصوف ژوند یې یو مثال بللی شو، خو له عقل پورته مثال یې د هغو کسانو دی چاچې د دې مینې په لار کې د خپل محبوب د رضا د ترلاسه کولو لپاره خپل سرونه وشیندل؛ هغه چې د تن په غوښو او هډوکو یې د دښمن مقابله وکړه او هغوی یې ځان ته یې ایل کړل؛ نړی یې له ډاره په کورونو کې خلاف نشو ویلای، خو د حقیقي مینې دغو سرمستو شازلمو د دې ښامار په خوله کې لاس ورننه ایستی او د ټولي نړی پر وړاندې یې د هغه حیثیت په صفر کې ضرب کړ.

د مینې د همدې ډول او د هغې د څښتنانو اړوند زمونږ ګران ملګري د تاند قلم او پیاوړي عقیدې څښتن ځوان عالم مولوي صفي الله رائد صاحب یو خورا په زړه پوري اثر لیکلی دی چې د"سپېڅلې او رېښتینې مینه "

په نامه یې نومولی دی .

لکه څنګه چې یې نوم دی، په واقعې ډول یې همداسي سپېڅلی لیکلی او رېښتیا هم مینه پارونکی کتاب دی. د کتاب نور څرنګوالی خو به لوستونکو ته هله ورمعلوم شي چې کله یې په لوستلو سره د دماغ غړنی سیمه ګلورینه کړي، خو د غوره والي او محبوبیت یوه بېلګه یې د هیواد د نامتو علماؤ او تکړه لیکوالانو نظرونه یا تقریظونه دي چې د نوموړي دغه شاهکار یې په خورا زرینو کرښو ستایلی دی.

په ځانګړې توګه ویلای شو چې په کتاب کې د هېواد د یو وتلي او مشهور عالم شیخ الحدیث حضرت علامه نور الله منیر تقریظ تر څنګ د هیواد مشهورو لیکوالانو قاری سعید زرمتی، طارق بدر، الیاس فاتح، اکرام الدین مفتون او محمد عمر منیب په زړه پوري لیکنې کړي.

یاد کتاب د سپېڅلې او رښتینې مینې تر عنوان لاندې په یوې اوږدې مقدمې پیل شوی چې وروسته دغه مینه پکې په څو ډګرونو وېشل شوې او ځای ځای پکې دمینې په باب ښایسته او په زړه پوري مستندې لیکنې او کیسې هم را نقل شوي، چې د کتاب مضمونونو ته یې لا ښکلا وربښلې ده.

په کتاب کې د هیواد وتلی او نامتو لیکوال"طارق بدر" د "مینه مبهمه نه ده "

عنوان ږدي او لاندې ترې داسي کاږي:

"دا کتاب د خپل ډول تر ټولو جالب کتاب دی، دلته پر مینه فلسفي بحث نه دی شوی، بلکې مینه عملاً ښوودل کېږي، زه چې په معاصره نړۍ کې د یرغلګرو پر وړاندې د روان جهاد استشهادي بهیر ته ګورم، وایم که په دښمن کې یې یوه ذره انسانیت وای، باید منلې یې وای چې استشهادي ځوان د قربانۍ تر ټولو ستره نمونه وړاندې کوي .

کتاب کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم، صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین او نورو پیغمبرانو او روحانیونو کیسې بیان شوې دي، خو زه یې په معاصره نړۍ کې د مینې پر معاصر او تر ټولو زړه ټوپ وهونکي ډول استشهاد باندې خبرې کوم.

په یوه معسکر کې روزل کېدونکي استشهادي راته د خپل ورځني ژوند کیسه پیل کړه، د استشهادیانو تر منځ خلوص، مینه، احترام، اعتبار او الله جل جلاله ته نږدېکت بـه د سړي زړه په ټوپونو کړ، د اسلامي امت د ځوانانو دا ډله په روانه تکه توره تیاره کې چې حتی د خدای تصور یکې کمزوری معرفي کېږي، مادیاتو ته سجدې کېږي او کفر نږدې پر هر ډول پر نړۍ حاکم دی، د مینې، اخلاص، خدای دوستۍ دا ډول نمونه ښایي څو پېړۍ وروسته د تاریخ هغه زرینه پاڼه شي، چې لوستونکي به پېړۍ پېړۍ وروسته یوازې د نومونو په اخیستو ژاړي، حیرانېږي به او دا به یې زړه ته نه لوېږي، چې څوک دې د الله جل جلاله لپاره د دښمن د غوښو شیندلو په خاطر خپل هډونه سره وشیندي!

د روان جهاد په بریا کې استشهاد تر ټولو بارز اغېز درلود، دا ځوانان د الله جل جلاله لپاره ژوند کوي او د الله جل جلاله لپاره پخپلو غوښو اور بلوي، نو که څوک غواړي پوه شي، چې مینه یعنې څه؟ مینه څومره قرباني غواړي؟ څنګه ثابتېدلی شي؟ څوک یې باید دعوه وکړي؟ د استشهادیانو ژوند دې مطالعه کړي، د دوی ویډیویي کلیپونه دې وګوري، د دوی پر غوښو بلې شوې لوخړې دې ووینې او د موټر بم په غرز کې پاشل کېدونکي هډوکي دې ذره ذره ووینې او د دې پاشل شویو هډونو په دوړو کې او لوګیو کې ننوتل کېدونکي استشهادي ځوانان دې وګوري چې مرګ ته ور روان دي.

له الله جل جلاله سره مینه انسان حقایقو ته رسوي، دا مینه انسان پوه کوي چې دا نړۍ مجازي ده او په دې مجازي نړۍ کې دومره نه ډوبېږي چې حقیقي نړۍ یې زیانمنه شي، دا ډول انسانان له مرګه ځکه نه وېرېږي چې دوی ته مرګ د فنا کېدو په معنی نه ښکارېږي، دوی پوهېږي حق ته رسېږي، حق ته نږدې کېږي او چې پر دې هم باوري وي چې ده د انسان په حیث د الله جل جلاله پر دین دومره غیرت کړی چې تر خان یې د اور تږوتې تاو کړلې او کرېږې یې عرش ته وختې، نو د الله جل جلاله غیرتي ذات به ورسره څه وکړي؟ تر تصور پورته خبره ده؛ دوی اخرت ته په منډه دي، ځکه بریالي دي او ښتینې مینه همدا ده چې انسان انساني اړیکي ټولې د همدې ارزښتمنې اړیکې لپاره هیڅ وبولي.

د کتاب لیکوال او لوستوالو ته دې الله جل جلاله اجر ورکړي".

کتاب په خورا غوره کیفیت سره چاپ شوی او د هیواد د بېلابیلو ولایتونو لکه کابل، جلال آباد، خوست، میدان ښار، کندهار، غزني او لوګر تر څنګ د پاکستان په اکثرو لویو او مشهورو کتابخانو کې هم ترلاسه کېدای شي.

الله تعالی دې لیکوال ته د دنیا او آخرت ښېګڼې ورپه برخه کړي؛ الله جل جلاله دې دغه خدمت قبول او د نومووړي او د هغه د والدینو لپاره د آخرت توښه وګرځوي او الله رب العزت دې د لوستونکو د فکري چینو د خلاصولو او د ذهني اصلاح سبب وګرځوي. آمین



ليکوال: عزام حقاني، زابل

# په اسلامي ټولنه کې د مسلمان ځوانانو اهميت

ځوانـان د يـوې کـورنۍ ، ټـولنې او يـوه هيـواد د مـلا د تير حيثيـت لـري د يـوې ټـولنې اويـو هيـواد د پرمختـګ او وروسـته پاتوالي راز د ځوانانوپه تربيت او عدم تربيت پوري اړه لـري. کـه چيـري د يـوې ټـولنې يـا يـوه هيـواد ځـوان قشـر لـه خپـل دين،عقيدې،تاريخ،تمـدن او خپـل مسـؤليت څخـه بـاخبره وي،دوست او دښمن پيژندونکي وي،هغه ټولنه او هيواد به له هره اړخه جوړ،پياوړی او له هرډول معنوي اومادي پرمختګ څخه به برخمن وي. خو که ناخبره اوله خپلو مسؤليتونوڅخه په غفلت کې وو نـو همـدا ملتونـه اوقومونـه بـه د ډول ډول بـدبختيو،ناخوالو اوستونزو سره لاس او ګريوان وي اود ذلت پـه وروسـتيوپوړونو کـې به ژوند کوي په هروخت کې به دغليم او استعمارګرپه وړانـدې پـه ګونډو وي او د هغوی په غلامي کې په ژوند کـوي ، ترټولو بـده لا داچې همدا ناخبره ځوانـان د ښـکيلاکګرو پـه چـوپړ کـې شـپه او ورځ د څـه مـادي لالـچ پـه اخسـتلو د خپلـو هيوادوالـو پـه وژلـو لګياوي!

دښمن ډير ژور کار زموږ په باسواد او ځوانه طبقه کړی دی.

زه خو بيخي حيران شم او افسوس هـم راتـه ودريږي چې زموږ دعاتو، علماؤ، پوهانو او د اسلامي فکر او قلم خاوندانو څومره بې غوري او غفلت کړی دی چې نن ډير پـه اسـانۍ او لږ مصرف سره زمـوږ ځوانـان او اکـثره لوسـتې طبقـه د دښـمن د اهـدافو د تحقق لپـاره پـه عسـکري او فکـري ډګـر کـې شـپه او ورځ د خپـل دين، هيواد او خلکو په او خرابولو وژلو لګيا دي.

وينه او خوله د مسلمان ابن مسلمان بچی ور کـوي ثمـره او نتېجه يې صليب او د صليب پلويانو ته ځي!!!

نو د يوې ټولنې او هيـواد يـا ملـت د قـوت اوضـعف اساسي نقطه دهغې ټـولنې، هيـواد اوملـت ځوانـان دي. کـه همـدا قشرـ اصلاح اوجوړ وو هغه هيواد او ملت په قـوي اوپرمختللـی وي اوکـه فاسد په پرديو افکارو اونظرياتو لړلي له خپل دين اوعقيدې څخه ناخبره وو نو دا هيواد او ټولنه به هميشه د کفارو ترحملو، تيريـو او ډول ډول ظلمونـو اووحشـتونو لانـدې وي.(ښـکاره بيلګـه يـې د اسلامي نړۍ د نن ورځې حالت دی)

د اسلام دښمنانو د اسلامي امت د دې ضعيفې نقطې څخه ډيره ګټه پورته کړې ده او اوس هم ډير په چټکۍ سره لګيـا دي او ټول وسايل يې په کاراچولې دي څو وکولی شي د مسلمه امت د ځوانـانو عقايـد، اخـلاق، افکـار او نظريـات پـه خپلـو منحريفـو، طاغوتي اوشيطاني نظريـاتو ولړي او لـه سمې لارې څخـه يـې د آزادي، مساوات، تمدن، موډ اوفيشن په نومونو وغولوي، څـو خپـل ځان، اسلامي هويت اوخپل ديني مسؤليتونه تـرې هيرکړي او پـه ټوله معنی يـوغربي شـخص وګرځـي چـې يـوازې د خيټـې مړولـو، شـهوت پـوره کـول او خـوب کولـو پـه لټـه سرګردانـه وي، دنفس اوشيطان غلام يـې کـړي د خپلـو بـدو اوکرغيړنـو موخواوشـيطاني اهدافوپه خاطرې په ځان پسي روان او بلاخره د خپلو استعماري اهدافو په ګټه وکاروي.(زموږ دهيواد حالت همداسـې شـوي دي، لويه برخه ځوانانو مو پرون د کمونيزم د ګمراه نظريـې د خپراوي

په خاطر د روسانو په غلامي کې هیواد په کنډواله اوهدیره بدل کړ او نن یې د لغوړنې لیبرالې ډیموکراسۍ او سیکولریزم د خپراوي لپاره د راغلي یرغلگر امریکا په غلامي کې هغه مظالم اووحشتونه وکړل چې قلم یې له لیکلو اوژبه یې له ویلوعاجزه ده.(

نو د امت اسلامي اصلاح او جوړونه د ځوانانوپه اصلاح اوجوړونه کې دی. که د امت همدا ټولی اوډله دین دوسته، د اوچتو اخلاقو لرونکې بااستقامته، خپل ځان، تاریخ، تمدن اوخپل اصیل اسلامي فرهنگ څخه خبره وي نو د مسلمه امت ټولې دیني،سیاسي، اجتماعي، کلتوري اواقتصادي چارې به اصلاح اوسمې وي.خو که همدا قشر۔ د غرب د فکري جگړې په زهرو لړلي، دغربي فرهنگ څخه متأثره، له خپل دین اوعقیدې څخه ناخبره د اخلاقي زوال سره مخ بې غیرته اوفاسد وي نود مسلمانانو ټولې دیني،سیاسي، اجتماعي، کلتوري اواقتصادي چارې به گډوډې، خرابې او د داسي ډارنو اوبې دینه اشخاصو لخوا به اداره کیږي چې د خپلو دیني اوملي ارزښتونو پرځای د غربي اهدافو تحقق به یې لوی هدف وي او همیشه به د ښکیلاکگرو په چوپړ کې د مسلمانانوپه وژلو لگیاوي(د اسلامي دنیا د نن ورځې مشران، حاکمان اوفوځونه یې ښه تطبیقي مثالونه دي.) او همدا راز بله ښه بیلگه یې زموږ د گران هیواد روان بحراني حالت دی چې د حاکمیت چارې استعمارگرو د قدرت په زور داسي لنډغرو او پردیپاله خلکو ته ورکړې دي چې په امریکا کې د حیوان په مرگ له امریکایي ولس سره د غمرازۍ

او غمشریکۍ اوښکې تویوي خو دلته له ورځې په درجنو درجنو عام مظلوم او ملکي هیوادوال د اشغالگرو په ناترسه بمباریو او وحشي۔ چاپو کې ژوند له لاسه ور کوي دوی یې د غندلو او خپگان پر ځای په زخمونو مالگې دوروي په یو او بل نوم یې توجیه کوي !!

نو د ټولنې په آگاه قشرونه باندې لکه علماءکرام، خطیبان، داعیین، د مدرسو، ښوونځیو اوپوهنتونونوپه استادانو، قلموالو اوټولو اغیزلرونکو شخصیتونو باندې غږ کوم چې په دې تاریخي، ویرجن، د کفرترمستقیم اشغال لاندې، فسق او فساده ډک دور کې

خپل ایماني او وجداني مسؤلیت ادا کاندې. د ولس ځوان اونوی نسل دې د کفارو د گمراه کوونکو دسیسو، پلانونو او دامونو څخه خبر کړي تر څو ځان تري وساتي او هم یې په وړاندې د مقابلې لپاره د دفاع سنگرونه تاوده کړي. خپل اصیل اسلامي، کلتوري او سوچه فرهنگ دې ځوانانو اونوي نسل ته تشریح کړي او د غربي وراسته اوبدمرغه فرهنگ بدي او ناولیتوب دې ورته بیان کړي تر څو مو ځوان او نوی نسل په خپل هغه اسلامي اصیل فرهنگ ژوند ته دوام ورکړي چې د دنیا او اخرت د سعادت، کامیابی، درنښت اوعزت ضامن دی.

د اسلامي سبا په هیله

## امام ابو حنيفه رحمه الله

امام ابو حنیفه رحمه الله ته به چې کله کومه مسئله سخته شوه، خپلو ملگرو ته به یې ووېل: دا زما د کومې گناه لامله راته سخته شوه، نو د "استغفر الله" په ویلو به یې پیل وکړ او کله به لمانځه ته پورته شو، نو مسئله به حل شوه او ده به ووېل: لکه چې گناه مې الله تعالی راته وبښله! د امام ابو حنیفه رحمه الله دا کیسه چې الفضیل بن عیاض رحمه الله ته ورسیدله، هغه ډېر زیات وژړل او ویې ویل: د دې سړي گناهونه ډېر کم دي.

طبقات الحنفیة لـ علي القاري ۲/۴۸۷ د رسالة المسترشدین

ليکنه: ميوند مجاهد

# دطالب ګوزارونو

## له لېوني ټرمپ څخه پر سد جوړ کړ!

د امريکاولسمشر ـ ټرمپ وروستي وينا ته په پام چي،((ما خپل ناکام جنرالان د خپلي ارادې او هوډ څخه نه شي اړولی، ما چي څه ويلي هغه به حتما عملي کوم)) په خپل وروستي ټويټ کي يي ټولنيزو رسنيو ته واستول، دنوموړي دې کلک دريځ امريکايي جنرالان او پوهان نور هم حيران کړل ځکه يوشمير امريکايي جنرالانو او لوړ پوړو تمه درلوده چي ګواکي ټرمپ به د دفاع وزير جيمز مټيس په استعفا وړاندي کولو او يو شمير لوړپوړو امريکايي چارواکو په نه همږغيتوب به د خپلي خبري څخه بيرته را په شا شي خو، اولسمشر ټرمپ دتمي خلاف لا هم په خپله پخوانی خبره کلک ولاړدی چي موږ به حتما دسوريي اسلامي هيواد په شان دافغانستان او نورو هيوادونو څخه امريکايي پوځيان راباسو.

راځئ يو څو شيبې په دې خبره تم شو ،چي اولسمشر ـ ټرمپ ولي په دې ټينګ ولاړ دی چي، خامخا به نوموړی له افغانستان څخه خپل ځواکونه باسي او په افغانستان کي دناټو غوښ ملاتړ ماموريت قومندان په شمول نور لوړ پوړي چارواکي او جنرالان بيا مخالفت ښيي او ټينګار کوي چي امريکايي پوځيان دي له افغانستان او نورو هيوادونو څخه نه وزي؛.

يو شمير لوړپوړي امريکايي جنرالان چي دټرمپ سره دانه مني چي امريکايي پوځيان دي نور له افغانستان څخه راووزي، دوی فکر کوي چي زموږ په وتلو سره به طالبان په راتلونکي کي امريکايي اولس او ګټو ته ګواښ وګرځي، همدا خبره وه چي ټرمپ ته نږدې کس د فاع وزير جيمز مټيس خپله قيمتي دنده د استعفأ په ليک ونازوله او د خپلي دندي سره يې مخه ښه وکړه.

دا په داسي حال کي ده چي طالبانو پر پوله نږدې همسايه هيوادونو ته لکه ، چين، ايران او نورو ته د پيل څخه تر نن پوري هيڅ ضرر نه دی رسولی او نه يي دهغوی په داخلي چارو کي کومه مداخله کړي، نو امريکا چي دنړۍ بل کونج دی دهغوی په داخلي چارو کي به څنګه بي له سببه مداخله وکړي، دا يوازي د هغه ډار او وارخطايي پرته بل څه نه دي کوم چي همدغو امريکايي لوړ پوړو د اوولس کلن جهاد په جريان کي د طالب مجاهدينو او غازيانو دبرياليو بريدونو او تاکتيکونو په نتيجه کي محسوس کړي.

بل لور ته اولسمشر ټرمپ چې په ټولو کې ستر مسئولیت دهغه دی چې باید تر بل هرچا دی باید ډېر دامریکا امنیت او ګټو ته متوجه اوسي، ځکه دښو او بدو دپېښېدو پر مهال د کاله مشر، تر بل هر چا ډېر مسئول وي نو ځکه نوموړی د خپل شخصیت د داغداره کېدلو په بیه هم چې، په وروستیو کې د ناټو پخوانی عمومي قومندان ستانلي مک کرسټل له لوري ورته بد اخلاقه دروغجن او دوکه کوونکی کس ورته وویل شو، هم تیار دی چې پرېکړه یې عملي شي.

که فکر وشي د ټرمپ دا پرېکړه بې څه نه ده چې، خپل پوځیان دافغان نه ماتیدونکي سنګر څخه باسي، نوموړی پوهېږي چې هر څومره مالي او ځاني قرباني ورکړو بیا هم دا جګړه نه شو ګټلی او ورځ تر بلې طالبان غښتلي او بانفوذه کیږي.

ټرمپ هماغه ټرمپ دی چې، اولسمشرۍ چوکۍ ته د رسیدو سره یې له ډېر فکر او سوچ وروسته دظلم او وحشت څخه ډکه ستراتیژي اعلان کړه او نور امریکایي ځواکونه یې دافغانستان بې وسه او مظلوم اولس ته دوژلو او ربړولو لپاره راواستول. دا په داسي حال کې وه چې دافغانستان اسلامي امارت په یوه سر خلاصي لیک کې دټرمپ څخه وغوښتل، چې خپل امریکایي ځوانان په دې نه ګټونکي جګړه کې مه قرباني کوی او مه دافغان مظلوم اولس ژوند ته خطر جوړیږئ.

اوس چې نوموړي د طالبانو فولادي هوډ او غښتلی سیاسي دریځ دمسکو په نړیواله سیمه ایزه غونډه او دابوظبي په غونډه کې ولید چې، دطالبانو داشرط چې تر څو امریکایي پوځیان ددوی له هیواد څخه وتلي نه وي، لا هم دې ته چمتو دي چې دامریکایانو او ورسره ملګرو په خلاف یې داحق جګړه نوره هم وغزوي او لا هم سم دلاسه په امریکایي ځواکونو مرګوني بریدونه ترسره کیږي نو ټرمپ دلته داحس کړه او سر یې خلاص شو چې، نور ددې وخت رارسیدلی دی چې نوردافغانستان څخه خپل ځواکونه را وباسي ځکه تاوان چې په هر ځای را وګرځي بیا هم ګټه ده او افغان جګړه ددوی څخه هرکال په ملیاردونو ډالر غواړي چې باید مصرف یې کړي.

## آیا_میدانی_دیوث_کیست ؟

دختران که با بیگانگان روابط نا مشروع دارند.
دختران که در دانشگاه و کورس ها با لباس های غربی و غیر اسلامی میروند.
دختران که لباس تنگ و شهوتی میپوشند
دختران که لباس چسپ میپوشد
دختران که لباس مردانه میپوشد
(پطلون میپوشند، چاکدامن)
دختران که لباس نیمه برهنه میپوشند
دختران که لباس نازک میپوشند
دختران که لباس تنگ میپوشند
دختران که موهای خود را کوهان شتر میکنند
دختران که در دفاتر و بازار ها با سنگرا میرود
دختران که عطر و خوشبو استعمال میکنند.
دختران که با بچه های نامحرم عشق بازی میکنند
فامیل این دختران دیوث اند و دیوث داخل جنت نمی شوند به خصوص پدر برادر وشوهر...
قرآن میگوید :
ای کسی که ایمان آوردی خود و اهل بیت تان را از آتش جهنم نجات بدهید.
_#✅رسول_الله (صلی الله علیه و آله و سلم) میفرماید:
«سه نفر هستند که بهشت بر آنان حرام می باشد:
-کسی که همیشه خمر می نوشد
-نافرمان والدین
-دیوثی که به خباثت در خانواده اش راضیست».
(رواه احمد، رواه نسائی)

# د معارف په حریم

## د ګډ دښمن تیری او جنایات

جمیل-محصل

د اکتوبر په ۳۰ نېټه غزني کې په ملکي هیواد والو د سلیس بربریت په لړ کې د شپې ۱بجه امریکایي اشغالګرو او د دوی کرایه شوو قاتلانو د د دغه ولایت، واغظ مفتوحه ولسوالۍ اړوند، سر بلند کلا کې د مولوي موسی خان په مدرسه وحشیانه چاپه ووهله.

د بشر دښمنو ځواکونو په دغه چاپه کې چې د څرخکو په مټ ترسره شوې، د یادې مدرسې (۷ ) تنه زده کوونکي طالبان یې په شهادت رسولي دي.

د اکتوبر په ۱۴ مه نېټه صلیبي یرغلګرو دهلمند ولایت، دسنګین ولسوالۍ د استیشن په سیمه کښې په مدرسه وحشیانه بمباروکړ چي دمدرسې څلورتنه کوچني شاګردان یی په شهادت ورسول.

د اکتوبر په ۱۴ نېټه د بادغیس ولایت د سنګ آتش ولسوالۍ اړوند د لودینانو په سیمه کې مزدور دښمن یوه دیني مدرسه د ( خالد بن ولید) مدرسې په نوم یوه برخه ویجاړه کړه او دمدرسې ټول لوازم یې له ځان سره وړي وو.

د اکتوبر په ۱ نېټه د پنجشنبي دشپې پرلس نیمو بجو داشغال ګروامریکایي عسکرو اودهغوی د اجیروکماندویانوله خواد هلمندولایت دګرشک ولسوالۍ دیخچال په سیمه کې چاپه ووهل شوه.

یرغلګر او ورسره مزدوران یې په سیمه کې دماشومانو یوې دیني مدرسې ته ورغلل دوړوکوحافظانو څخه یې پوښتنې وکړې وروسته یې شاګردان له مدرسې څخه وایستل خو دقرآن شریفونودوړلوڅخه یې حافظان منعه کړل اومدرسه یی په ماینونووالوزوله چې مدرسه له نورو ټولو لوازمو سره تر(۴۰) زیات دقرآن پاک نسخې اویو مسجد هم په شهادت ورسول .اناالله واناالیه راجعون.

د نوامبر په ۳۰ مه نېټه په هیوادوالو د اشغالګر او مزدور دښمن د مظالمو په لړ کې د شپې په ۹ بجو وحشي-اشغالګرو د غزني ولایت، شلګر ولسوالۍ اړوند مستوفي سیمه کې په مشهوره دیني مدرسه نور المدارس او علیزو کلي باندې چاپه وهلې چې د شپې تر ۲ بجو یې دوام درلود.



په دغه وحشیانه چاپه کې ځناور صفته اشغالگرو د مدرسې کتاب خانه تخریب کړې، د وطاقونو دروازې او کړکینان یې مات کړي، ۲ شخصي- موټر یې سوځولي او کلیوال کورونه یې په بمونو الوزولي دي.

همدارز وحشي دښمن د حاجي نصیر په نوم کلیوال په شهادت رسولی،۲کلیوال او د مدرسې اداري مدیر او اشپز یې د بندیانو په توگه له ځان سره وړي دي.

د نوامبر په ۲۳ مه نېټه د غور ولایت په فیروز کوه کې مزدور دښمن ددیني مدرسې کتابونه او قرآن کریمونه ټوټه ټوټه کړي.

دغه جنایت دښمن مازدیگر ۴ بجې د غور ولایت د مرکز چخچران اړوند د فیروزکوه د خرمرده سیمي ته ګڼ شمېر مزدور عسکر دعملیاتو په موخه راووتل.

دښمن په سیمه کې یوه دیني مدرسه ( مجمع العلوم) ته هم ورغلل چې هلته یې دمدرسې ټول اسباب او ګڼ شمېر قرآن کریمونه ، اونور دیني کتابونه ټوټه ټوټه کړي او ځیري کړي وو.

د نوامبر په ۱۵ د بلخ ولایت چهاربولک ولسوالۍ اړوند د شرشرک جامعه اسلامیه مدرسې باندې اجیرو عسکرو وحشت تر سره کړ او د مدرسې دارالحفاظ شعبه کې کوچني حافظان پاتې وو عسکر مدرسې ته ورغلي او د مدرسې دروازې کړکۍ یې ماتې کړي دي کوچني حافظان یې وهلي او یوتن تنکی حافظ یې په برچو ټپي کړی دی.

د نوامبر له ۱۱ نېټې څخه را په دېخوا د چمتال ولسوالۍ د ینګي قلعه په سیمه کې کورنیو اجیرو عسکرو ستر وحشت روان کړی چې دوام لري د سیمې مدرسې او مسجدونه یې بند کړي دي د دغې سیمې ۷ واړه او جامع مسجدونه بند کړي دي نه ماشومان ورتلای شي چې سبقونه پکې ووایې او نه ولسي خلک د پنځه وخته لمانځونو لپاره ورتګ کولای شي.

او دښمن دغه سیمه په DCتوپونو ولي د سیمې خلک کډه کولو ته اړشول او ډېر خلک ووتل او یاده سیمه یې خالي کړه، د خبر له مخې د یادې سیمې ځیني مدرسې او مسجدونه تخریب شوي دي او په DC لګیدلي دي دروازې کړکۍ او چتونه یې زیانمن شوي دي او د دښمن دا ستر وحشت تراوسه جریان لري.

د نوامبر په ۷ نېټه میدان وردګ؛ جغتو ولسوالۍ کې ګډ دښمن په دیني مدرسه چاپه کې (۵) تنکي حافظان په شهادت ورسول.

دغه وحشت د ګډ دښمن وحشي- عسکرو دمیدان وردګ ولایت، جغتو ولسوالۍ اړوند، اختوم په کلي کې د ضیاء العلوم په نوم په یوه دیني مدرسې د چاپې پر مهال ترسره کړ.

دغه وحشیانه چاپه کې اشغالگرو او کرایه شوو قاتلانو یې د قاري حامد، قاري ذبیح الله، قاري فضل محمد، قاري مبشر او طالب محمدنسیم په نومونو د مدرسې پنځه تنه

تنکي حافظان په خورا ستر وحشت او بې رحمۍ سره په شهادت رسولي او د مدرسې تعمير يې په بشپړه توګه ويجاړ کړی دی.

په دې برسېره يې د مدرسې لويه کتابخانه چې د قرآن کريم په ګڼون بيلا بيل ديني کتابونه پکې وو سوځول شوې او مدرسې ته نژدې ملکي کورونو ته هم د دروازو په ماتولو ځناور خصلته وحشيان داخل شوي او خلکو ته يې درونـد مالي زيان اړولی دی.

د نوامبر په ۳ مه نېټه د شپې امريکايي اشغالګرو ځواکونو د خپلو کورنيو مزدورانو په ملتيا د پکتيا ولايت مرکز اړوند د وچ غړک سيمه کې د سيمې په لويې سراج العلوم ديني مدرسې چې لسګونه طالب العلمانو او حافظانو درسونه په کې ويل چاپه وهلې.

د لومړنيو معلوماتو په اساس دښمن لومړی مدرسې ته بمونه ور اچولي او بيا ورننوتلي د مدرسې داخل ته د خونو دروازې او کړکۍ يې ورماتې کړي دي او د مدرسې تعمير ته يې زيان اړولی ګڼ شمير ولسي خلک او د مدرسې استادان يې هم له ځان سره بنديان کړي دي.

امريکايي وحشي ځناورو او د هغو غلامانو د عام ولس په وړاندې خورا لوی وحشت پيل کړی چې په دې لړ کې يې د خلکو بازارونه او تجارتي مراکز ورسره ديني تعليمي ادارې او مساجد تر خاص هدف لاندې راوستي دي.

د دسمبر د مياشتې په ۴مه نېټه د فراه ولايت مرکز کې فراه ښار اړوند د قلعه زمان په سميه کې د شپې د مزدور دښمن د جاسوسي شبکې له لوري يو باب ښوونځی سوځول شوی و، د تعليم او تربيې سيمه يز مسؤلين وايي چې مزدور دښمن غواړي په دې توګه مجاهدين بدنام کړي.

خو د اسلامي امارت مجاهدين ياده پېښه په کلکه غندي او کوشش کوي ترڅو دپېښې اصلي عاملين پيدا او د خپل شوم عمل په سزا يې ورسوي.

د دسمبر د مياشتې په ۵مه نېټه د ورځې شاوخوا يوه بجه د غزني ولايت، ګيلان ولسوالۍ اړوند شنکي کلي کې شريرواربکيانو د مدرسې هغه تنکی حافظ چې څو ورځې وړاندې د ګډو وحشيانو په بربريت کې ژوبل شوی و، د صاحب زاده صاحب د مدرسې په انګړ کې په خورا ځناورتوب او بې رحمۍ سره په شهادت ورساو او بل کليوال ماشوم يې سخت ژوبل کړ.

د ديسمبر په۸ نيټې صليبي يرغلګرو او ددوی کرايه شوي اجيرانو د خوست ولايت مرکز د لټکو د کلی په مدرسه امدادالعلوم باندې وحشيانه چاپه ووهله چې لوی وحشت يې ترسره کړ.

د تعليم او تربيې مسؤلينو د خبر په استناد ټوله شپه يې طالبان په دې سخته يخنۍ کې د سهاره پورې درولي وو ټول شيان يې ورڅخه لوټ کړل.

ان تردې چې موبايلونه يې هم له ځان سره وړي دي اوپه سهار کې ۵ تنه طالبالب العلمان له ځان سره يوړل چې د ولسي خلکو په غوښتنه ۴ تنه طالبان بيرته راخلاص شول يوتن لاتراوسه په اسارت کې دی.

د دسمبر په ۱۲ مه نېټه د چهاربولک ولسوالۍ د شرشرک په مدرسه جامعه اسلاميه باندې د شهراه قومندان عبدالله خان ټانګونه راوستل او د مدرسې او مسجد تعمير يې له اور لاندې ونيوه او د مدرسې ودانۍ يې ډېره سخته زيانمنه کړه خو الحمدلله چې ځاني زيان يې نه درلود.

د تعليم او تربيې ځايي مسؤلينو په وينا، يو شمير قومي مخور ولسوالۍ ته ورغلل او شکايتونه يې وکړل چې د تاسو له خوا ولي ديني مدرسې داسې تر بريدونو لاندې راځي نود ولسوالۍ قومندان په ځواب کې ورته ويلي وو چې العياذ بالله ټوله فتنه له همدې مدارسو څخه را ولاړيږي.

د دسمبر په ۱۵ نېټه د شپې مهال دهلمند ولايت دمرکزلشکرګاه اړوند د کاريز په سيمه کې دمزدورې ادارې د جاسوسې شبکې له لوري په يوه ديني مدرسه چاپه ووهل شوه؛ د چاپې په پايله کې مزدوردښمن دمدرسې ناظم ( مولوي محمدشفيق) له ځان سره بندي کړ له ۱۲ ساعته بند

وروسته يې نوموړی په خورا وحشت اوظلم سره په شهدت ورساو. اناالله وانااليه راجعون

د دسمبر په ۱۹ د ننګرهار ولايت لعلپوره کې ګډ دښمن چاپه کې د قاري حميد په نوم مدرسه وسوځوله؛ د تعليم او تربيې د مسؤلينو د راپور په بنياد په ولسي- وګړو او ملکيتونو د ګډ دښمن د بې رحمانه چاپو په لړ کې د شپې ۱۰ بجې اشغالګرو او مهارشوو ګوډاګيانو يې د ننګرهار ولايت، لعلپورې ولسوالۍ اړوند، چيکنور سيمه کې يوه ديني مدرسې ته اور اچولی او ور پکې يې ټول سامان سره سوځولې ده.

د دسمبر د په ۲۰ نيټه دبهسودو ولسوالۍ څخه غني خيلو ته د تقريري سياليوکي چې د تعليم او تربيې کميسيون له لورې برابره شوې وه دګډون په موخه دوه تنه کم عمره طالب العلمان د غلامي اداري لخوا ونيول شول دوه ورځې وروسته د سپينږيرو په ضمانت بيرته خوشي شول اما په تقريري سياليو کې دګډون اجازه ورنکړل شوه.

د دسمبر د مياشتی په ۲۲ نيټه د ننګرهار ولايت د چپرهار ولسوالۍ د څلوزی د ليسی مدير داعشي- خوارجو لخوا ذبح کړی شوی او سر يې ورڅخه وړی و او په دويمه ورځ يې بيا قومي مشرانو او سپينږيرو ته له تن څخه جلا کړی سر بيرته ورکړی و.

د ښونيزو چارو مسؤلينو په وينا دغه مدير يې د دې لپاره بې رحمانه ډول په شهادت رسولی و چې ګويا دی د اسلامي امارت د مجاهدينو سره همکاري کوي.

د دسمبر د مياشتې په ۲۳مه نېټه سهار وحشي يرغلګرو د پکتيکا ولايت، سروبي ولسوالي اړوند د عمر اکا زيارت سيمه کې دبې پيلوټه الوتکې په بريد کې د قاري رسول خان د عبد الله خان زوی د مدرسې طالب العلم چې د يادې سيمې اوسيدونکی و په شهادت ورساو.

د دسمبر د مياشتې په ۲۵مه نېټه دهلمند ولايت دکجکي ولسوالۍ اوند د ده بابا په سيمه کې ماسپښين ناوخته ديرغلګرو الوتکو دملکي خلکو پر کورونو اوبازار بمباري وکړ ه چې پر نور زيان سربيره يې د ديني مدرسې ۳تنه طالبان ، يو چوکيدار او ۳ تنه نورملکي وګړي شهيدان کړل . اناالله وانااليه راجعون

د دسمبر په ۲۵ مه نېټه د بلخ ولايت د چمتال ولسوالۍ د تعليم او تربيې سيمه يز مسؤلين وايې چې دروزګاني په کلي کې يوه نوی مدرسه اعمار شوې وه له پرانيستلو د مخه اجيرې دښمن پوسته پکې واچوله چې اوس يوه لويه نظامي قرارګاه ده

سناتور راند پال وايي:

## ويتنام کې مخالفينو زموږ د وتلو انتظار کاوه او اوس طالبان عيناً همدا کار کوي

د امريکا مقتدر جمهوري پال سناتور راند پال د جمهورريس ټرمپ له هغه فيصلې څخه خپل کلک ملاتړ اعلام کړ چې وايي ډير ژر به له افغانستانه ۷۰۰۰ امريکايي عسکر را و باسي.

سناتور پال وايي د دفاع وزير متيس غواړی چې په مينځني ختيځ کي ابدي جنګونه دوام ولري، او هغه د سوله ايز او سياسی حل مخالف دئ.

سناتور پال وايي د افغانستان جنګ کټ مټ د ويتنام جنګ ته ورته دئ.

ځکه په افغانستان کي زموږ ستراتيژي دا ده چي که چيری موږ يو څو نور کلي اشغال کړو، موږ به قوي موقف ترلاسه کړو. خو دا يوه ناکامه ستراتيژي ده.

هغه وايي په ويتنام کي مخالفان زموږ تګ ته انتظار و ايست، او اوس طالبان عينا همدا کار کوي.

سناتور پال وايي ټرمپ پر سمه لاره روان دئ، او زه فکر کوم چی اکثره امريکايان د هغه سره همنظره دي. هغه علاوه کړه: راځئ چي خپله امريکا آباده کړو.

# د جومات آداب

مفتي عبید

۱ -جومات ته د ننوتلو په وخت کې باید اول ښي پښه وړاندې شي او دا دُعا وويل شي:

)اَللهُمَّ افْتَحْ لِی اَبْوَابَ رَحْمَتِک)َ.

ژباړه: ای الله ﷻ! زما پر مخ د خپل رحمت دروازې پرانیزه.

۲ -جومات ته تر ننوتلو وروسته، له کښیناستلو مخکې، دوه رکعته تحیة المسجد لمونځ کول پکار دی ،

د رسول الله ﷺ ارشاد مبارک دی:

،په تاسې کې چې څوک جومات ته ولاړ شي، تر څو یې چې دوه رکعته لمونځ نه وي کړی، تر هغې دې نه کښیني.

بخاري و مسلم

۳ -له جومات څخه د وتلو په وخت کې باید لمړی چپه پښه وړاندې شي او دا دُعا به ووایئ:

)اَللهُمَّ اِنِّی اَسْئَلُکَ مِنْ فَضْلِك)َ.

ژباړه: ای الله ﷻ! زه له تا څخه ستا د فضل او کرم غوښتونکی یم.

۴ -په جومات کې د زیات نقش او سینګار کوښښ کول نه دي پکار.

۵ -جومات ته په داسې حال کې تلل چې، اوږه، پیاز، تنباکو او نور بد بویه شیان مو خوړلي وي، مکروه دي، لمړی باید خپله خوله پریمنځئ او بیا مسجد ته داخل شئ.

٦ -په جومات کې خبرې کول، شور کول، پلورل او اخیستل مکروه دي؛ خو له بده مرغه، زمونږ د هیواد په ډیرو برخو کې چې ژمی شي او خلک وزګار شي؛ نو بیا په جومات کې خپل بنډارونه کوي.

رسول الله ﷺ فرمایلي: څوک چې په جومات کې خبرې کول پیل کړي؛ نو ملائکې په لمړي ځل ورته وایي:

(اُسْکُتْ یَا وَلِیَ اللّه)! یعنې: چوپ شه، ای د الله ﷻ دوسته!

که بیا هم خبرو ته دوام ورکړي؛ نو ملائکې ورته ووایي: (اُسْکُتْ یَا بَغِیْضَ اللّه) ! یعنې: چوپ شه ای د الله ﷻ دُښمنه!

که بیا هم چوپ نشي؛ نو په دریم ځل ملائکې ورته ووایي: (اُسْکُتْ لَعْنَتُ اللہ عَلَیْک)! یعنې: د الله ﷻ لعنت دې وي پر تا، چوپ شه!

همدارنګه په مشکوة شریف کې، د شعب الایمان په حواله یو روایت کې راغلي: جناب رسول الله ﷺ فرمایلي: په آخره زمانه کې به داسې خلک پیدا شي چې، جومات ته به راځي، هلته به ډلې ډلې کښیني او دُنیاوي خبرې به کوي، تاسې له داسې خلکو سره مه کښینئ؛ ځکه چې الله ﷻ ته په جومات کې د داسې خلکو ضرورت نشته.

(عمدة الاحکام ص۷۵)

ابن همام رحمه الله وایي: په جومات کې دُنیاوي خبرې کول، نیکي داسې له منځه وړي؛ لکه وچ بوټی چې اور له منځه وړي. (فتح القدیر)

۷ -په جومات کې په اوچت آواز لمونځ کول نه دي پکار؛ ځکه چې د نورو د لمونځ د اخلال سبب ګرځي او د نورو په لمانځه کې اخلال ګناه ده.

۸ -د جومات دروازه تړل نه دي پکار، که د سامان د غلا خطر وي؛ نو

په هغه وخت کې يې تړلی شی؛ چې د لمانځه وخت نه وي.

۹ -جومات ته په جنوب، نفاسې او حائضې حالت کې ننوتل ګناه ده.

۱۰ -په جوماتو کې لاره جوړول ناجایز دي، که سخت ضرورت وي، باک نلري.

۱۱ -په جوماتو کې چې کوم ځای خالي وي، هلته کښیناستل پکار دي، د خلکو په اوږو تیریدل ګناه ده.

۱۲ -په پښو پورې که څه ګندګي یا ختې نیښتې وي؛ نو جومات ته له ننوتلو مخکې یې مینځل پکار دي.

۱۳ -جومات ته د داسې ماشومانو بوتلل چې، د متیازو حال نشي ویلی، یا داسې بې عقل او لیونی چې، په پاکۍ او ناپاکۍ نه پوهیږي، ننوتل پکار نه دي ، داسې ماشومان چې د لمانځه سن ته نه وي رسیدلي، لمونځ کونکو ته د آزار سبب ګرځي.

او هغه چې جوماتو یې تلل مشروع وي، د جوماتو اهل باید پر هغوی سخت ګیري ونه کړي.

(اسلامي فقه، فتاوی اسلامیة، عمدة الاحکام، فتاوي المحمودي حنفي)







# افغانستان

## د امریکا شپږمه ګوته ده، باید پرې سي

رابرټ کپلان:

د امریکا مشهور سیاسي مبصر او لیکوال، رابرټ کپلان، د جنوري پر اوله په نیویارک ټایمز کې لیکې امریکا د افغانستان پر ماموریت باندې دونه زیات مصرف کوي چې ښايي یوازې د امریکا له ستراتیژیکې حریفانو سره کومک وکړي .

کپلان لیکي د ترمپ دا فیصله چې ښايي تر بل دوبي پورې به ۷۰۰۰ امریکایي عسکر راوباسي، د ټرمپ د سیاسي روش او پالیسیو په اره ئې اندېښنې راپورته کړې دي. اما په افغانستان کې د امریکا د ماموریت راکمول اجتناب ناپذیره دئ. واقعا، له افغانستانه د امریکایي عسکرو د پای پاکه راایستلو وخت راسېدلی دئ.

په جهان کې بل هیڅ ملک د امریکا د امپراتورۍ زوال داسې ښه نه تمثیلوي، لکه افغانستان. ځکه د طالبانو پر خلاف د نظامي بری هیڅ امکان نسته، او د دې امکان هم نسته چې هلته یوه تپانده دیموکراسي تر شا پرېښودو. البته، دا هغه واقعیتونه دي چې په واشنګټن کې ناست پالیسي- جوړونکې ئې له منلو څخه انکار کوي .

که څه هم په افغانستان کې اکثره امریکایي عسکر د سیمټي دیوالونو تر شا پټ ناست وي، او له هغو خلګو څخه ځان ساتي چې دوی ئې د کومک کولو ادعا کوي. خو دا د حیرت خبره ده چې د واشنګټن په سیاسي محافلو او امریکایي میډیا کې د افغانستان په اړه خورا لږ بحث کېږي. په بل عبارت، کله چې خبره د افغانستان کېږي، واشنګټن هغه ښار سي چې د شرم او نااميدۍ د جګې کلا په دیوالونو کې ځان پټ وي .

په داسې حال کې چې چین، پاکستان، هند، او ایران په خپلو هیوادونو او افغانستان کې د انرژۍ او کانونو د راایستلو لپاره رقابت کوي، داسې ښکاري چې متحده ایالات په افغانستان کې هیڅ اقتصادي مستقبل نه لري. حال دا چې امریکا په افغانستان کې هر کال ۴۵ ملیارده ډالره مصرفوي. د براون پوهنتون په حواله د جنګ نهایي لګښت به دوو ټریلیون ډالرو ته ورسېږي. دا ټول مصارف د یوه داسې لږزانه حکومت د ساتلو لپاره کېږي چې په اغلب ګومان به هله سره وشوړېږي چې زموږ کومک باندې قطع سي .

واقعیت دا دئ چې افغانستان د تاریخ د جبر او د هغو قوتونو د کامیابۍ نماینده ګي کوي چې جغرافیې، تاریخ، کلتور، او فرقوي مناسباتو سره راغونډ کړي دي. پدې جغرافیه کې پښتون، تاجیک، ازبک، هزاره، او نور اقوام مدام په سیالي او کشمکش کې دي. جنګسالاران او مافیایي شبکې د افغانستان د مخدره موادو پر تجارت او لارو باندې تسلط لري. د سیمې یو انګریز متخصص کاږي،«دا چې په افغانستان کې د امریکا

پیسې غلا کېږي، دا د دې مانا نه لري چې همدا روپۍ ضایع سوي دي،» بلکي همدا پیسې پر هغو محلي زورواکانو باندي تقسیم سوي دي چي یا ئې د طالبانو سره د یو ځای کېدو مخه نیولې ده،او ئې د جنگسالارانو خپلمینځي اخ و ډب راایسار کړی دئ.

البته، که چیري امریکا د عراق جنگ نه وای شروع کړی، (له کوم جنگه چي ما په غلطه حمایت کاوه)، ښایي د افغانستان حالات او سکتوري نفاق راکنټرول سوی وای. د احمد رشید په قول، په افغانستان کي امریکا پر انتخاباتو باندي زیات اصرار کاوه، خو د کارونو پر خلقولو، د وړو نسونو پر مړولو، او د دولتي د موسساتو پر جوړولو باندي ئې په کافي اندازه اصرار نه کاوه. په تېره بیا د داسي زیر بنایي او زراعتي پروژو پر تکمیلولو باندي چي په افغانستان کي په ۱۹۵۰ کي پیل سوي وې، او د شوروي تر اشغاله پوري ئې دوام لاره .

مسلمه خبره دا ده چي هیڅ وخت باید نا امیده نه سو، خو په افغانستان کي زموږ حالت خراب دئ. طالبان په زیاتیدونکې توگه مخ پر وړاندي په حرکت کي دي. که چیري د سولي مذاکرات کامیابه سي، هغوی به حتما د امریکا په زور د اشرف غني د نصب سوي حکومت سره قدرت شریک کړي. که چیري دا کار و نه سي، هغوی به پخپل زور حکومت ونیسي. زلمي خلیلزاد هڅه کوي چي یو داسي دپلوماتیک حل پیدا کړي چي هم متحده ایالاتو ته د قواوو د راکمولو فرصت برابر کړي، او هم دا تضمین کړي چي کابل سمدستي سقوط و نه کړي .

همدا وجه ده چي امریکا په افغانستان کي زیات مصارف قبلولي. د امریکا د دفاع وزارت له دې څخه وهم لري چي یو ځل بیا د ویتنام کانه تکرار نه سي، مانا مخالفان پر کابل باندي په داسي وخت کي هجوم راوړي چي امریکایي عسکر له افغانستانه د وتلو په حالت کي وي. د امریکا فوج د ویتنام له شرمه هله ځان خلاص کړ چي د عراق (۱۹۹۱) په جنگ کي ئې بری ترلاسه کړ. که چیري امریکا له افغانستان ناڅاپه راووځي، دا خبره به د امریکا د جهاني طاقت د زوال یوه بله بېلگه وي .

ځیني خلگ ښایي دا استدلال وکړي چي په کابل کي د امریکا په زور د نصب سوي حکومت سقوط به زموږ رقیبانو ته په هغه هیواد کي د پښو د ټینگولو ځای ور کړي، خو هله به د افغانستان جنجال د هغوی د غاړي سي .

بل پلو، یو قابل امریکایی دپلومات، چي د امریکا منظم او منسجم حمایت ور سره وي، ښایي پدې واتونېږي چي د افغانستان د سولي لپاره یو داسي بین المللي او سیمه ایز کانفرانس جوړ کړي چي هدف او نتیجه ئې په افغانستان کي د تروریستي ډلو لپاره د امن د ځایونو ختمولو وي. دا یوه داسي دپلوماتیکه پروژه ده چي ښایي هنري کیسنجر، ریچارډ هولبروک، جمېز بېکر، او جورج شولتس په حرکت راوستلای وای. خو د ټرمپ له اداري څخه د دې کار تمه کول معقول کار نه دئ. ځکه د ټرمپ په حکومت کي هشت و مشت او بې کفایتي خورا زیاته ده .

ایا په افغانستان کي د پاتیدو په برخه کي موږ افغان ملت ته کوم مسولیت لرو؟ نه. ځکه چي هغه ایډیال ته چي موږ متعهد یو، هغه نه حاصلېدونکی دئ. یوازي دا چي موږ هلته په ملیاردونو ډالره مصرفوو،او په زرهاوو عسکر مو ساتلي دي، څو د یوې گډوډۍ مخه ونیسو، دا په خپل ذات کي دومداره پالیسۍ نه سي کېدلای. موږ پدې پیسو په اسیا کي نوري ښې او مفیدي پروژې ابادولای سو چي د چین سره اقتصادي رقابت وکړای سو.

مگر له افغانستانه زموږ وتل باید یو دم او ناڅاپه نه وي. موږ باید زلمي خلیلزاد ته وخت ورکړو چي زموږ له ملگرو سره یو دپلوماتیک چوکاټ جوړ کړي. او دا کار باید داسي وکړو چي د خپلو قواوو د راوتلو تقسیم اوقات اعلام نه کړو، او خپل حریفان په لوی لاس پخپله قوي نه کړو چي موږ ته تگ انتظار وباسي .

راځئ چي سپیني خبري وکړو: افغانستان هغو سترو جنگي کنښتیو ته ورته دئ چي موږ ئې په داسي وخت کي په جوړولو لگیا یو چي په زیاتېدونکې توگه متروکه کېږي. ځکه موږ داسي عصري او پرمختللي توغندۍ لرو چي د دغو بېړیو د جوړولو کار عبث ثابتوي. افغانستان زموږ د امپراتورۍ شپږمه او بېکاره گوته ده، او د پرې کېدو وخت ئې رارسېدلی دئ .

# د مرحوم الحاج مولوي سید محمد حقاني رحمه الله

## د دریم تلین په یاد!

م عارف

له نن څخه درې کاله وړاندې مو په همدې ورځ (۲۰۱۵/۱/۲م) یو سپیڅلی، بادرده او بادرکه مشر او خورا ځیرک انسان الحاج مولوي سیدمحمد حقاني (شریف حاجي صاحب) رحمه الله له لاسه ورکړ.

الحاج مولوي سید محمد حقاني داسلامي امارت د بشپړ واک په وخت کې په کندهار کې د اطلاعاتو او کلتور رئیس، په پاکستان کې د افغانستان لوی سفیر د امیرالمؤمنین ځانګړی استازی، په کابل کې د بهرنیو چارو وزارت معین او بیا دچارو د ادارې د رئیس په حیث دندې اجرا کړې وې.

وروسته له هغه چې امریکایي یرغل وشو الحاج مولوي سید محمد حقاني رحمه الله د اسلامي امارت د تشکیلاتو په چوکاټ کې د فرهنګي کمیسیون د مرستیال په حیث دنده پرمخ وړه.

مرحوم حقاني رحمه الله تر وفات پورې د اسلامي امارت د فرهنګي کمیسیون د مرستیال په حیث رسمي دنده درلوده، خو د ۲۰۱۵م کال په آواخرو کې د شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله لخوا د اسلامي امارت د ټولو ارګانونو د محاسبې او څېړنې لپاره په یوه درې کسیز هئېت کې په کار وګمارل شو.

د همدې دندې د اجرا په وخت کې د سفر په حال کې د سږو د ناروغۍ له امله د لنډ وخت لپاره بستر او بیا د ۴۴ کالو په عمر وفات شو. اناالله وانا الیه راجعون

مرحوم مولوي سید محمد حقاني رحمه الله خورا ډېر مشفق، حلیم، صابر، متقي، هوښیار او دراک انسان وو.

هغه د ملګرو سره د ملګري په ډول چلند درلود، له مشرانو سره یې د یوه دروند، با تدبیره او با حوصلې مشر په شان اوسیده او له عامو مسلمانانو سره به یې چلند خورا صمیمانه، دوستانه او له عطوفت او مهربانۍ څخه ډک وو .

کله به چې له مرحوم حقاني رحمه الله سره څوک مخ کیدل، نو فکر به یې کاوه چې هغه یې ډېر پخوانی ملګری او شناخته دی، سره له دې چې دا به یې لومړی ځل لیدل وو، ځکه مرحوم حقاني صاحب د مهر او محبت داسې یو سرشاره هستي وه چې هیڅ غم، تکلیف او ناخواله حالت یې دغه صفت نشوای متأثره کولای.

مرحوم حقاني صاحب تر لاس لاندې پرسونل سره دومره صمیمي او دوستانه اوسیده چې کله به ورسره یوځای شوې، د جلا کیدو زړه به دې ترې نه کیده، تابه غوښتل چې تل ورسره نیږدې او یوځای وای.

کله به چې دې له مولوي سیدمحمد حقاني صاحب سره په ټلیفون تماس کاوه، دومره په حوصله او شفقت سره به درسره غږیده چې تابه د ټلیفون د قطع کیدو زړه نه کیده.

مرحوم حقاني صاحب به چې کله له کوم ملګري سره مخ شو، لومړی ځل به یې تبسم په خوله وو او په خورا مینه به یې روغبړ درسره کاوه، بیابه یې د ټول کور، اهل، کار او ماحول پوښتنه درځخه کوله.

که به حقاني صاحب مرحوم یوه خبره سل ځله هم پخوا اوریدلې وه، خوکله به چې تا هغه تکرار خبره بیا ورته کوله، نو د دې لپاره چې تا خفه نه کړي، نزاکت درسره مراعات کړي او لحاظ دې وساتي نو به یې ستادغه تکراري خبره په دومره شوق، ذوق او تعجب سره اوریده چې تابه ویل هیڅ خبر شوی نه دی او په لومړي ځل ما خبر کړ.

وروسته به معلومه شوه چې دا خبره حقاني صاحب مرحوم ته بل چا هم کړې ده، او په جریان شوی دی، دلته به نو ته پوه شوې چې مرحوم حاجي صاحب دا زما خبره په دومره تعجب او شوق ځکه واوریده چې زه د کمتري یا پیښیمانۍ احساس ونه کړم او یا خجله نشم. سبحان الله

مرحوم حقاني صاحب د خپلو ورسپارل شوو کارونو کلک مراقبت کاوه، په ډیر شوق او حوصله سره به یې خپل کار کاوه او د اسلامي امارت له مشرانو، صف او مجاهدینو سره یې خورا ډیر اخلاص، مینه او درناوی درلود.

مرحوم مولوي سیدمحمد حقاني رحمه الله په شخصي ژوند کې ډیر حیاناکه او دروند شخص وو، هغه تل د بل درناوی کاوه، د بل عزت یې کاوه، د میلمه سره به ډیر خوشحاله وو، مینه به یې ورسره کوله او د وقار یوه ټوټه وه.

اوس اګر که الحاج مولوي سید محمد حقاني رحمه الله زموږ په منځ کې نشته، درې کاله کیږي چې د هغه له شفقت ځخه ډک غږ مو نه دی اوریدلی، خو د هغه یاد له ټولو دوستانو، ملګرو، متعلیقنو او خواخوږو سره تازه دی.

شخصا زه هغه هیڅ نشم هیرولی، په ورځ کې یوځل حتما د هغه یوه کارنامه، یوه خبره، یوه مشوره ، یوه خوش طبعي اویا یوه لارښونه مخې ته راځي او مرحوم حاجي صاحب رایادوي.

د مرحوم حقاني صاحب له جدایي درې کلونه تیرشول خو موږ فکر کوو چې هغه اوس رانه جدا شوی، نه یې غم زړیږي، نه یې یاد هیریږي اونه یې هم صفات د فراموشۍ وړ دي.

دیوه مسلمان له ټولو ځخه ستره نیک بختي داوي چې د وروسته پاتو او دوستانو په نیکۍ سره هیر نشي او تل یې یاد تازه وي.

واقعا مرحوم مولوي سید محمد حقاني رحمه الله همداسې یونیمګرغه انسان دی.

کله چې د دریم تلین په مناسبت دغه څو کرښې د مرحوم حقاني صاحب په یاد کې لیکم، فکر کوم چې نن یې جنازه دفن شوې او غم یې تازه دی .

مرحوم حقاني صاحب ته په آخرت کې د الله تعالی لقاء او جنة الفردوس غواړو، بازماندګانو، ورونو، اولادونو او ټولو دوستانو او متعلقینو ته یې د پیروي او اتباع هیله کوو، که هغوی غواړي چې لکه مرحوم حقاني صاحب غونډې منل شوي او په ټوله معنا با ارزښته انسانان و اوسي نو باید د هغه لاره تعقیب کړي ، د هغه اخلاق او عادات خپل کړي او د هغه د اقرانو او دوستانو سره ملګرتیا او دوستي وپالي .

اللهم اغفره و ارحمه ولا تعذبه واجعل الجنة النعيم مثواه



# دامریکا متضاد دریځ

## او داسلامي امارت معقول او نتیجه خېز موقف

دروان ( ۲۰۱۸)ز کال دوروستۍ میاشتې په ۱۷ او ۱۸ نیټو دافغانستان اسلامي امارت دسیاسي استازو او د زلمي خلیلزادپه مشرۍ کې دامریکا یي لوري ترمنځ دمتحده عربي اماراتو په پلازمېنه ابوظهبۍ کې مخامخ مذاکرات ترسره شول ؛چې پدې دوه ورځنیو ناستو کې داسلامي امارت دسیاسي استازو اودامریکائي لوري ترڅنګ ددرې اسلامي هیوادونو (پاکستان، سعودي عربستان او عربي اماراتو) استازو هم برخه لرله

امریکایان چې داسلامي امارت دروازه ټکوي؛ سیاسي حل اوتفاهم ته دځان رسولولپاره داسلامي امارت دسیاسي استاځوسره کیني اوخبرې کوي داهسې عادي حالت اوتصادف ندی بلکې دا ددوئ دسخت مجبوریت حالت او دزهرو ډېرلوی غړپ دی چې کوي یې .

نوبې له شکه چې اسلامي امارت ته دامریکایانوکېناستل اودخبرو له لارې ورنه دمسئلې دحل غوښتنه په سیاسي ډګر کې لویه لاسته راوړنه اودکامیابې دیپلوماسۍ یو ډېر روښانه دلیل او داسلامي امارت دموقف لپاره داسې تاریخي ستره بریاده چې اسلامي امارت اودنړۍ ټول ژمن مسلمانان ترې دټولوصلیبیانو اوپه ځانګړي ډول دامریکایانو پرضد په تبلیغاتي ډګرکې دتېرو غشو او نېزو په څېر کار اخستلی اوزړونه یې پرې زخمي کولای شي.

هم ټوله نړۍ اوهم موږ پدې پوهېږو چې په سیاسي ډګرکې زموږ داستربریالیتوب په نظامي ډګرکې زموږ دبریالیتوب پایله ده .

امریکا چې افغانستان ته دطالبانو او مجاهدینو دربېښو ویستلو اودخپلوشومو اهدافو دلاسته راوړلو په موخه ددې هېواد ددائمي قبضې په ارادې راغلې وه.

دایې په وهم اوګومان کې هم نه راوسته چې یو وخت به دخپل ټول مادي ځواک باوجود دخپلو ټولواتحادیانوسره یوځای د تش لاسو طالبانو په مقا بل کې په عسکري ډګرکې شکست خوري ؛ دخپل شکست منلو ته به اړکېږي او د خبرومېزته به کیني.

په ټولې نړۍ کې ترټولو زیات کبرجنو اوپه خپل فوځي اومادي ځواک مغرورو امریکایانو که دافغانانو دکلک مقاومت په نتیجه کې ستره مرګ ژوبله اودرانده مادي زیانونه نه وای لیدلي په ټول عمر به یې له افغانستان نه دوتلونوم نه وای اخستی ؛نه به دې ته تیار شوي وای چې دغریبوافغانانو سره خبروته کېني ؛خپل شکست ومني اوپدې اعتراف وکړي چې جنګ اوزوردحل لارنده .

امریکاپه تیرو۱۷ کلونوکې یونیم تریلیون ډالر ولګول ، دمړو شویو، ژوبلو،معیوبواوپه اعصابي مرضونوداخته شویوعسکروشمېر یې ددوئ په وینا له پنځوس زرو اوړېدلی دی ، ډول ډول ستراتیژیاني یې پلي کړي اوخپل ټول عصري جنګي وسایل یې په کارواچول خو نتیجه یې ددوئ لپاره صفروه ؛ ورځ تربلې یې پرضد دجهاد ډګر ګرم اومقاومت خوراقوي شو.

نو امریکایان نورډېر ښه پوه شوي چې دجګړې اوزور له لارې یوه لویشت هم په مخ نشي تلای ؛نه طالبان دجنګ اوفشارونوپه نتیجه کې ماتولای یا کمزوري کولای شي اونه دکابل په لاسپوڅي نظام کې دا استعداد اوتوانویني.

امریکاځکه سیاسي پروسه په ډېر سرعت پیل کړې اومخ په وړاندې یې بوځي چې پوهیږي چې افغانستان دامریکاله لاسه وتونکی دی؛ امریکا په نظامي ډګر کې ماتې خوړلې ده او له یوې



سیاسي پروسي له لارې د اوږو پوزې اینښودوپرته بل هیڅ کوم چانس نه لري.

په نظامي ډګر کې پر دښمن دمجاهدینو دغلبې په برکت داسلامي امارت استازو دابوظهبی غونډه کې په ښه عالي روحیه اود جګړې دبریا په احساس برخه واخیسته ؛ په خپلومعقولو اومشروعو غوښتنو ټینګ ودرېدل او ترپایه قانع نشول چې دکابل دلاسپوڅې اداري هیئت سره ووینې او یا په غونډه کې یې دګډون سره توافق وکړي.

ټوله نړۍ پوهېږي چې د افغانستان روان جنګ دوه لوی اړخونه لري،یو لوری دامریکا په مشرۍ کې نړیوال یرغلګرځواکونه اود هغوئ افغان تنخواه خواره اجیران دي اوبل لوری دخپل دین ، خاورې اوملت نه ددفاع لپاره جنګېدونکی دافغانستان اسلامي امارت دی.

نو د روان جنګ همدا دوه اصل فریقان دي، دریم فریق نلري دکابل رژیم دامریکائي لوري جز؛ دامریکا یانو دیرغل محصول اودهغوئ په زور رامنځته شوی دی،کوم خپلواک حیثیت نلري .

نوځکه اسلامي امارت پرېکړه کړې چې د جګړې داصلي فریق سره چې امریکا ده خبرې وکړي څود سیاسي بحث او مکالمې له لارې هغه دیته اړباسي چې سملاسي دافغانستان اشغال پای ته ورسوي اوجنګ ځپلي مظلوم افغانان پرېږدي چې پخپله خپل مسایل حل او د سولې په فضا کې ژوند وکړي .

دافغانستان اسلامي امارت پدې پوهېږي چې دخپل ملت اوهېواد دآزادۍ او دخپلوعالي اهدافو دحصول په موخه اوس دسیاسي جګړې نازک اوخورا حساس پړاوته ورداخل شویدی نوځکه په ډېر دقت مخ په وړاندې ځي اوله عاجلانه پریکړو او ګامونو پورته کولو ځان ساتي.

اسلامي امارت ډېر امېد نه لري اونه خپل ولس ته دا تمه ورکوي چې دروانوسیاسي هلوځلواومذاکراتو دلارې به روانه جګړه خامخا اوژرپای ته ورسېږي ځکه چې دښمن مو ډېر مکار اوچالباز دی اودسولې په اړه یې کردار لا هم مشکوک او متضاد دی که یو لورته دامریکا خاص نماینده زلمی خلیل زاد له څو میاشتو راهیسې په دوامدار ډول دسولې لپاره دامارت دسیاسي دفتر استازو سره په لیدنو او بحثونو بوخت دی اودسولې په نوم مختلفو هیوادونوته سفرونه کوي نوورسره یوځای امریکا خپل وحشت هم په بې ساري

ډول زیات کړی ؛ زموږ پر ولس ړندوبمباردونو اوعملیاتوکې یې ډېرزیاتوالی راوستی دی ،هره ورځ لسګونه معصوم هیوادوال په شهادت رسوي او دوحشت دزیاتولی ترڅنګ د ناټو سرمنشي او دجنرال ډانفور په شمول امریکایې عسکري مشران له افغانستانه دامریکا او ناټو ځواکونو د نه ویستلو او دقبضې ددوام ګواښونه هم کوي او وایي چې په افغانستان کې دامریکا یې عسکرو شتون دامریکایانو دحفاظت لپاره لپاره ضروري دی

نو په داسې متضاد ماحول کې افغان ولس دامریکا دسولې په نیت او اراده باور نه شي کولی اونه یې دایقین ته پرېوځي چې امریکا دزړه نه سولې کولو ته تیاره ده .

که امریکا رښتیا هم سوله غواړي نو دغه متضاد حالت دي پای ته ورسوي اودړندو بمباردونو د لارې په افغان ولس دفشارونو زیاتولو څخه دې ډډه وکړي اودسولې او مذاکراتو لپاره دباور فضاء رامنځته کولو په مقصد دې دخپلو پاتې عسکرو دسملاسي انخلاء اعلان وکړي.

اسلامي امارت پدې ښه پوهېږي چې دامریکا دالوی تنزل ځکه شونی شو چې سنګر قوي و اودهمدې قوي سنګر په برکت طالبان اوس دبري او فاتحانه موقف څخه برخمن دي.

امریکا دې دچل فریب اومنافقت نه کار نه اخلي زموږ توره الحمدلله له پخوا نه زیاته تېره ده او زموږهمدا تېره توره به امریکا هغه څه ته اړباسي چې موږ یې غواړو ؛اوس چې امریکایي سرتېري د امریکا په تاریخ کې تر ټولو اوږدې جګړې سخت ځپلي ، ستړي کړي اوداسې مورال بایللي دي چې له مجاهدینو سره یې د هرډول مقابلې توان له لاسه ورکړی دی دلته یې پاتې کېدل دامریکا لپاره دلازیات شرم باعث ګرځي نودا اوس په دوئ ده چې دژر وتلولار خپلوي اوکه دلا زیاتومالي اوځاني هلاکتونو اودلازیات شرمونکي حالت سره دمخامخ کېدولپاره دپاتې کېدوخوبونه ویني ؟

# اوسنی حالت دتاریخ له نظره

لیکوال صابرجان

تاریخ هغه علم دی چې دتیرې وختونو کړه وړه بیانوي خوتاریخ زموږ دفکر په ډول فیصله نه کوي بلکې په خپل تګ لاره لیکل کیږي

هلته بیا څوک نشې لیکلی چې زرکلن شې اویا زرکلن هوایې دهلیزونه جوړول بلکې تاریخ په یوه خبره دهرچا اصلیت معلوموي

دنن زمانې تاریخې ویاړونه په دوه طرفونو ته منسوبیږي یو طرف افغانانو ته منسوبیږي بل طرف امریکایانو ته منسوب کیږي

مثلا دننی زمانې دتاریخ لیکلو د سر توري به امریکایان داسې لیکې

**داتلو امریکایې سربازانو له خوا دافغانستان فتحه**

هلته به دامریکایې عسکرو اتلولې لیکل کیږي اوهغوی به دخپل وطن قهرمانان ځکه یادیږي چې دخپل ملت اووطن دنوم اونشان لوړولو لپاره یې شپږ زره کیلومتره لیري جګړه کـول اوشـپږ زره کیلـومتره لیـري یـې امپراتـوري چلـول اودهغوی راتلونکې نسلونه به په دې ویاړي لکه کټ مټ چې موږ په احمدشاه ابدالي ویاړو چې اته ځله یې هند فتحه کړی اوهرافغان جلا جلا په ویاړي

امریکایان بـه پـه خپـل تـاریخ کې هیڅکله هـم دکـرزی غني رباني اتلولې ذکر نه کړي چې زموږ سره یـې دافغانسـتان پـه نیولـو کې مرسته کـړي ده لکه زمـوږ داحمدشـاه بابـا پـه تاریخ کې چې موږ هیڅ هندی نه پیژنو اونه یې اتـل ګڼو چې داحمدشاه بابا سره یې مرسته کړي ده

دتاریخ بله برخه دافغانانو ده چې دمثال په ډول داسې لیکل کیږي

لومړی فصل پرافغانستان دامریکایانو یرغل اودهغوی مـاتي اویـاد امریکـایې ښـکیلاک د وخـت اخرنـي باچـا محمداشرف غني دادوه خبري چې راتلونکی نسل دعنوان په ډول ووینې نور داشرف غني ښه کار هـم بـد ورتـه معلـومیږي اونفرت ځینې کوي هلته بیا څوک دزرکلـن هـوایې دهلیزونـه په جنازه کې سجدو ته فکر نه کوي

عین مثال شاه شجاع ببرک کارمـل اوډاکتـر نجیب هـم درلـودی مـوږ ټـول شـاه شـجاع تـه ځکـه بـد وایـو چې هغـه انګریزانـو باچـا کـړی و اویـا کارمـل تـه ځکـه بـد وایـو چې روسانو باچا کړی و

یا محمدیعقوب خـان تـه ځکـه بـد وایـو چې دګنـدمک تړون یې دانګریزانو سره کړی و اوهیڅوک دافغانانو څخه په دې کسانو فخر نه کوي

سره له دې چې شاه شجاع دانګریزانو غـلام و مګـر تـر اشرف غني اوکرزی وطن تـه ډیـر ژمـن و شـاه شـجاع هـم نـه دي ویلـې چې انګریـزان دوطـن دخرابـی لپـاره راغلـي بلکې همداسې یې ویل چې انګریزان زموږ وطن ابادوي

اونه څوک دکارمل په ویډیوګانو کې داسې خبره پیداکولی شي چې هغه دې ځان د روسانو غلام بولي اود افغانستان دتخریب لپاره دې خبري کوي بلکې ترغني ځان ازاد بولي اوهم ترغني اوکرزي زيات دابادی اوترقۍ خبري کوي همدارنګه یعقوب خان هم د ګندمک شرموونکې معاهده دخپل ځان دشخصې ګټو لپاره نه وه کړي بلکې د وطن لپاره یې کړي وه همداسې عین ترون غني هم له امریکایانو سره کړی دی

دپورتني خبروخلاصه داسې کوم چې ددې وخت دتاریخ ویاړلې څیري دوه ډوله دي

۱ هغه کسان چې پرافغانستان یرغل کړی اوافغانستان یې نیولی دی په دې کسانو به دامریکایانو راتلونکې نسلونه ویاړي اودوی به فاتحین بولي

۲ هغه کسان چې دامریکایانو سره جنګيدلې دي اودوی ته یې ماتې ورکړي اوله افغانستان څخه یې شړلې دي

په دې کسانو دافغانانو راتلونکی نسلونه ویاړي اودوی به خپل غازیان اوقهرمانان بولي

تاریخ بیا د دهشتګرد تروریست او پنجاب لفظونه نه استعمالوي ځکه که تاسې دانژدې د روس دوخت تاریخ وګوری دهمدې وخت مجاهدینو ته هم کمونیستانو اوخلقیانو اشرار دهشتګرد د وطن دښمنان دپنجاب اوامریکا غلامان ویل مګر هیڅ کتاب اوهیڅ تاریخ به یې په همدې نومونه ونه لیکې بلکې ټول ورته دافغان مجاهدینو لفظ کارولی دی

فقط د روسانو دوخت یوڅوپاتې شونواو دهغوی داولادونو بغیر چې کله کله اوس هم داشرارکلیمه استعمالوي.



# امریکا د افغانستان

## په جګړې کې خپل حیثیت بایلوده

**د امریکا نیویارک ټایمز ورځپاڼې "له افغانستان څخه د وتلو مهال" ترسرلیک لاندې یوه مقاله خپره کړې چې په کې یې د دې هیواد ستونزمن ماموریت او روانو حالاتو ته کتنه کړې.**

**ورځپاڼې ویلي، امریکایي ځواکونه له هغو وګړو د ځان ساتنې لپاره د فولادي کانکریټي دیوالونو تر شاه مېشت دي ، چې ټاکل شوې وه د هغوی مرسته وکړي.**

**د مقالې لیکوال لیکي، رسنۍ په حیرانونکې توګه افغانستان ته کم پام کوي او د هغې جګړې په هکله چې امریکا په کې خپل حیثیت بایلوده، چندان پام نه کوي.**

**ورځپاڼه زیاتوي، دومره لګښتونه که امریکا بل ځای کړي وای؛ ښايي د سیالانو سیال شوی به وو.**

**لیکوال زیاتوي؛ امریکا تر دې مهاله داسې شرموونکې ماتې نه وه لیدلې او د نړۍ هېڅ هېواد د افغانستان په څېر د امریکا د زوال ښه سمبول نه شي کېدلی.**

**د ورځپاڼې په باور، په دې سربیره چې امریکا هرکال په افغانستان کې ۴۵ میلیارد ډالر لګوي، خو په زیربنایي او نورو پروژو کې د امریکا د رقیبو هیوادونو پراخه ونډه، واشنګټن ته بل شرم دی او په وینا یې "کله چې افغانستان یادېږي نو واشنګټن هغه ښار دی چې د شرم او زړه تنګوالي له امله خپلو دیوالونو تر شاه ځان پټوي"**

**ورځپاڼه وايي، اوس د دې وخت را رسیدلی ، چې امریکا د امپراتوریو له دغه پاتې شوني غړي نه خپل ځان راټول کړي او دغه شپېړمه بې ضرورته ګوته له ځانه پرې کړي.**

# ګلخونه

## همیش

تا لټولې ورپسې ده هره لاره همیش
د چا د پلو نښې دې وړي دي غباره همیش

د زړګي سره رب دې وساته خو هېر مې نکړې
ما هم دوعاکې یادوه د رب لپاره همیش

څوک دې یادیږي چا پسې د زړه په رنځ اخته شوې
د چا یادو ته شوګیره یې تر سهاره همیش

اوس مې هر چا ته زړګی نه ورځي بلا دې واخلم
ډېرو یاری کې سر خوړلی اعتباره همیش

بیا دې له درده هومره خوند اخلم چې څه ووایم؟
ته چې مُسکی شي راته څریکوکې پرهاره همیش

ما د زړه ستړي ژوندانه، ترخه څکلي قربان
ځکه ځان ساتم د زړه سترو له ازاره همیش

اوس مې پرمخ شکر رڼا ده، یادوي مې یوڅوک
خاصو دعاووکې کوچیه سپینه یاره همیش

# تا بود وردت دعا

یوسف گم گشته باز آید به کنعان غم مخور
کلبه احزان شود روزی گلستان غم مخور
ای دل غمدیده حالت به شود دل بد مکن
وین سر شوریده باز آید به سامان غم مخور
گر بهار عمر باشد باز بر تخت چمن
چتر گل در سر کشی ای مرغ خوشخوان غم مخور
دور گردون گر دو روزی بر مراد ما نرفت
دائما یکسان نباشد حال دوران غم مخور
هان مشو نومید چون واقف نه‌ای از سر غیب
باشد اندر پرده بازیهای پنهان غم مخور
ای دل ار سیل فنا بنیاد هستی برکند
چون تو را نوح است کشتیبان ز طوفان غم مخور
در بیابان گر به شوق کعبه خواهی زد قدم
سرزنشها گر کند خار مغیلان غم مخور
گر چه منزل بس خطرناک است و مقصد بس بعید
هیچ راهی نیست کان را نیست پایان غم مخور
حال ما در فرقت جانان و ابرام رقیب
جمله می داند خدای حال گردان غم مخور
حافظا در کنج فقر و خلوت شبهای تار
تا بود وردت دعا و درس قرآن غم مخور



## شپول

#مفتون

د وحشت شپو ته زوال درسره راوړه
وخته سپین د حق مشال درسره راوړه

چې غوږونو کې پردې د نفرت پرې کا
هغه چیغه د بلال درسره راوړه

زه په خپل خلیلي عظم مطمئن یم
نمرودي لمبې او تال درسره راوړه

د سهار باده راځه په زندانونو
د بندي ملګرو حال درسره راوړه

چې ځوانانو ته احساس د غیرت وشي
دشهیدې پېغلې شال درسره راوړه

چې راځې زموږ په کلي ته اختره
یو خوږ زیری د وصال درسره راوړه

مجاهده دا د حورو فرمایش دی
په تندی د وینو خال درسره راوړه

جهادي وطن ته ځه د فکر بازه
غلیز مرغه د خیال درسره راوړه

چې پرې مینه د دردمن مفتون کړم ماته
ترې په اوښکو لوند دسمال درسره راوړه.

## شعر

د زړه رڼا یې په مخونو کې خبرې کوي
لکه ګلاب چې تصویرونو کې خبرې کوي

دې بعضې خلکو عشق کې نوم د لیونو ګټلی
حورې پرې ځکه جنتونو کې خبرې کوي

عجب حالت دی هغه خلک په ظالم تورن دي
ربه چې ستا په ایاتونو کې خبرې کوي

د هغو خلکو په زړګي به خفګان څنګه راشي
چې توره شپه کې په نفلونو کې خبرې کوي

دا زلمی ځکه دې لمبو کې له خندانه شین دی
دې ته یو نور په دې اورونو کې خبرې کوي

د عشق مکتب کې چې داخل نوي په نه پوهیږي
بندیوان اوس په نظرونو کې خبرې کوي

تو هستی ملجا این بینوایان — الهی جان ما را تکیه گاهی
نباشد خاطیان را غصه از آنک — تو ستار عیوب و هر گناهی
الهی دل غنی گردیده زان دم — که بنمودی بر این مسکین نگاهی
نصیب جان فنا گشتن به راحت — نصیب تن شود هم سوز و آهی



# در اوج انزوا سیاسی

در هژده سال پسین رهبران بنام جهادی، سیاسی، فعالان مدنی و... در یک نکته باهم موافق بودند و آن هم اطاعت وحرف شنوی از آمریکا در سال های گذشته هیچ حزب سیاسی،رهبر جهادی و مقام رژیم کابل جرائت مخالفت با سیاست ها و عمل کرد های آمریکا در افغانستان را از خود نشان نداد حتا در مورد تلفات ملکی،اما با آمدن حکومت وحدت ملی ع ـ غ گراف اطاعت و حرف شنوی از آمریکا به شدت به شدت بالا رفت.

غنی وعبدالله برای جلب توجه آمریکا از سیاست های منطقوی این کشور در سطح جهان ومنطقه بدون قید و شرط حمایت نمود که به گونه نمونه از موضع گیری حکومت افغانستان در قبال جنگ یاد آوری کرده می توانیم.

در بخش داخلی غنی وعبدالله مناصب مهم دولتی در اداره امور و سایر ادارات مهم دولتی را در اختیار کسانی قرار داد که دو خصیصه داشتند.

۱.مدرک تحصیلی از آمریکا.

۲.داشتن تابعیت آمریکایی

در پهلوی آن اشرف غنی وعبدالله در چهار سال گذشته در قبال تلفات ملکی که در اثر بمباردمان های نیروهای هوایی آمریکا رخ داد نه تنها خاموشی اختیار نمود،بلکه در بعضی موارد در نقش وکیل مدافع این نیرو ها ظاهر گردید.که به گونه مثال از حادثه ولایت غزنی،کونر وهلمند نام برده می توانیم.

در مراسم که بعد از عقب نشینی طالبان از قسمت های ولایت غزنی بر گزار شده بود یکی از بزرگان قومی به رئیس جمهور کابل گفت که در یک حمله هوایی نیروهای آمریکایی بیست و هشت عضو خانواده اش را از دست داده است.

غنی حرف وی را قطع کرده گفت:

- شما در این بخش تخصص ندارید ازهمین رواجازه بدهید متخصصین در این باره تحقیق کند تا قضیه روشن شود.

اماباوجود این همه خوش خدمتی که رژیم کابل انجام داد آمریکا در پادش این حرف شنوی های وحلقه بگوشی ایشان انهارا در مساله گفتگو های صلح کاملآ در حاشیه قرار داده است.

در ابتدا نماینده آمریکا حتا حاضر نبود جزئیات گفتگوهایش باطالبان را با رژیم در میان بگذارد و زمانی این کار را انجام داد غنی تلویحآ گفت که از طریق رسانه ها خبر می شود که در مذاکرات میان طالبان و آمریکا چی می گذرد.

وقتی من این حالت غنی را دیدم به یاد زمام داری کارمل افتادم،زمانی که ببرک به سر اقتدار بود می گفت:

انسان و افغان واقعی کسی است که ایمان کامل و باور عمیق به دوستی افغان _شوروی داشته باشد.

اما وقتی وی در مسکو روز های آخر زندگی اش را می گزراند به گفته کاوه کارمل(پسر ـ ببرک کارمل) روس ها هر روز برای تخلیه کردن یک آپارتمان دو اطاقه برای شان هشدار کتبی می فرستاد وهم چنان داکتر روسی به هدایت استخبارات این کشور بجای تزریق امپول مسکن،پیچکاری را به وی زرق می کرد که ناراحتی کبدش (جیگر) دو چندان می کرد.

من نمی دانم روزی فرا خواهد رسید تا زمان داران از تاریخ بیاموزند یاخیر؟

# د فکري يرغل طوفان،

## د نوح نبي په څېر کشتيبان غواړي!

ليکوال:م عبدالمتين عاطفي

د اسلام د دښمنانو او صليبيانو د فکري يرغل د دفاع او مخنيوي لپاره تر ټولو لومړی بايد خپله سالم فکر، فکري حريت،استقلال،خودي او خود داري ولرو، د ذهني او فکري غلامي له اسارت او اسير چاپيريال نه لرې او ورسره وابستگي ونه لرو؛ ځکه چې په داسې چاپيريال او محدوده کې د انسان فکري ورتياوې کمزورې کېږي لا پسې مړاوي،کم ځواکه او بې ودې شي او د ارتقاء موانع يې زياتيږي.

د فکري يرغل مقابله به هله وکړای شو چې د پاخه ايمان، يقين،باور او روغې عقيدې بنسټونه مو پياوړي او مستحکم وي،چې ورسره د نيکو اعمالو، اذکارو، د تعبد او تحنّث په عارفانه او صوفيانه چاپيريال کې واوسيږو او د ټولو هغو لارو چارو په لټه کې شو چې انسان پرې خپل خالق ته مقرب کېږي او له شيطان او د هغه له لښکر او له تلبيساتو پرې ژغورل کېږي.

فکري دفاع، فکري جگړه غواړي؛ فکري جگړه ژمنتيا، فکري پوهنه او فکري سمبالښت غواړي؛ فکري سنگرونه،فکري مدرسې،فکري مکتبونه،فکري خانقاوې او دوامداره فکري مبارزه او مجلسونو ته اړتيا لري... او داسې مرکزونه غواړي چې د فکر او گروهې د کتابونو او ليکچرونو له مخې پکې فکري استاذان شپه او ورځ د اسلامي فکر درسونه او اصول تدريس کړي او ورته د اسلامي فکر ښېگڼې، مزايا مثبت اثرات او د کفري او غلامانه فکر او ذهنيت بدی او ناوړه پايلې وښودل شي.

د اسلامي امت د اتلانو او فکري مبارزينو د هڅو او اقداماتو زرين تاريخ او کړنې وروښودل شي او بيا د مشق او تمرين په ډول ترې وپوښتل شی.

د اسلامي فکر اِحياء او نشأةِ ثانيه د هندوستان د فاتح او ستر بت سومنات ماتوونکي سلطان محمود غزنوي-رحمه الله- حضرت محدث شاولي الله-رحمه الله-حضرت سيد حسين احمد مدني-رحمه الله- مولانا عبيدالله سندهي-رحمه الله-،مولانا اشرف علی تهانوي-رحمه الله-،علامه سيد جمال الدين افغاني- رحمه الله-(چې هغه د اسلامي امت او د فکري دعوت سره يې دومره مينه او عشق و،چې په دې سپېڅلې، خو اغزنه لاره کې يې د ډېرو بوختياوو له کبله د ژوند تر پايه واده او نکاح هم ونه کړه) او شهيد عبدالله عزام-رحمه الله - په څير فکري غمخوار رجال او لارښودونکي غواړي،چې د اسلامي دعوت او جهاد په عملي لاره کې وفات او ځينو د شهادت جامونه نوش کړل،خو په اسلامي فکر يې زرگونه ځوانان وروزل.

اسلامي فکر ته بلنه بايد د هر ځای او چاپيريال سره سم د سيمو د استوگنو خلکو په خپله ژبه او مناسبو اصطلاحاتو او ادبياتو سره تلقين شي،لکه د علامه سيد جمال الدين افغاني په اړه کنبل شوي دي چې هغه به کله په مصر کې د هغه مهال د مستبد او ظالم واکمن پر خلاف ځوانان راپارول،نو يو دهقان او کروندگر چې په لغاتو او سياسي اصطلاحاتو به نه پوهيده، نو هغه ته به يې د ده د فکر او په کروندگرۍ کې د کارونې د وسائلو په ترسيم

سره داسې دعوت ورکاوه:"ای زما کرونـدگره وروره! تـه چـې پـه دې مضبوطو لاسونو او متو سره په چارې(بېل) او کولنـگ سره د ځمکې زړه څېرولی شې،نو آیا په دې لاسونو ته د دښمن ککرۍ نه شې ماتولای"

اسلامي فکر پیاده کول او د فکري یرغـل مخنیـوی وسـیع النظر خلک کولی شي،تنگ نظري او د عقیـدې بخـیلان هغـوی چې د عقیدوي مسائلو په نوم او بهانه لـه جزئي او ورو فروعـي مسائلو عُقدې او لانجې جوړوي دا کار نه شي کولی.

باید زموږ د فکري ډگر لارښوونکي نه بـې چوکاټـه دومـره فکري آزادي ولري چې اسلامي مذاهبو ته نه وي قائل او یا ورتـه احترام ونه لري او نه دومره تنگ نظري وي چې که کوم څوک له ده سره په مذهب کې شریک نه وي،نو ورته -العیاذبالله-له کافره کم نه بریښي.

له ځینو اسلامي دعوتگرو سره په ځینې مسائلو او د هغـوی په تفرداتو کې اختلاف په خپل ځـای دی، خـو د هغـوی د فکـري مبارزې یادونه او ورته احترام او درناوی باید وکړل شي.

زه -الحمدلله- د حنفي مذهب کلک پلوی،ترې قربان او پرې ویاړم،خو مذهبي افراطیـت بیـا لـه اسـلام او مـذهب سره ټکـر، د فکري مبارزې په نازکه مرحله کې ستر خنډ او ضد عمل بـولم او پایله یې تفریط راته ښکاري.

د فکري یرغل دفاع داسـې رجـال او اسـتاذان غـواړي چـې فکري ارزښتونو ته په عظمت قائل او له مادیاتو زیات معنویـاتو او اعتقادیاتو ته گروهمن او باوري وي.

د فکري یرغل مقابله او ډغرې فزیکي جگـړې تـه اړتیـا نـه لري.

کوتک،ســـوک،څپېړه،غېږ بازي،تېرانـــدازي، ټوپـــک، ټانک،الوتکې،بمونو د اتومونو کارونه، او داسـې نـور فـوځي او نظامي تجهیزات نه غواړي. البته!فکري مخلصانه هڅې، زیـار او د داسې فکري ملگرو مجهز لښکر غواړي چې له عقیدې، اسلام، قرآن او هېواد نه د دفاع او سرښندنې په لار کې یې د خپل مـادي ژوند ستر ارمانونه او هیلې ځار کړې وي.

له فکري جگړې سره همهاله چې په نظـامي ډگـر کـې هـم پوره او برجسته فعالیت ولرو،نو د کامیابي چانس بـه مـو بیخـي باوري او نږدې وي.

د فکري جگړې ډگـر د نظـامي ډگـر لـه رهبري او ادارې لا زیـات قـوي مدیریت،وړتیا،مناسـب اعـداد او نـور د اړتیـا وړ لوازمات غواړي.

فکري جگړه هغه مردان او میـړني گټلـی شي څـوک چـې د خپلې ټولنې د افرادو زړونه گټلی او لاسته راوړلـی شي، مـړه او خوبولي ضمیرونه بیدارولی او په شور راوستلی شي.

د فکري یرغل د طوفان او طغیان په وړانـدې د نـوح -علیـه السلام- په څیر د عزیمت څښتن کشتیبان او جالوان ته اړتیا ده.

د فکري یرغل او پرلپسې صلیبي فتنـو د یـأجوج و مـأجوج مخنیوی د سلطان صلاح الدین ایوبي او نورالدین زنگي پـه څـیر جهادي او فکري سدِسکندر غواړي.

د صـلیبانو د فـوځي او فکـري یرغـل،زورواکي او مـاده پرسـتي د سـور سـیلاب پـه وړانـدې د روحانیـت او اصـلاح د مخکښانو:حضرـت عبـدالقادر جـیلاني -رحمـه اللـه-،حضرـت بهاؤالدین نقشبند-رحمه الله-،حضرت خواجه معین الدین چشـتي اجمیري-رحمه الله-، حضرـت شـهاب الـدین مقتـول سـهروردي-رحمه الله- او د هډې د لوی مجاهد او صوفي مولانـا نجـم الـدین اخندزاده-رحمه الله- په څیر روحاني شخصیتونو هڅو،مراقبـاتو،د باطن تصفیې، د خدای -جل جلاله- د رضـایت حاصـلولو،د رسـول الله-صلی الله علیـه وسـلم- د سـنتو د اتبـاع لټـون او د نفسـونو اصلاح او د شیطان د مخالفت په موخه فکري چمتووالي ته اړتیـا او مبرم ضرورت لیدل کېږي.

له فکري یرغـل نجـات، فکـري انقـلاب غـواړي او فکـري انقلاب د جهـادي لارښود،سـتر سیاسـتمدار، دینـي عالم،مقتـدا او مبارز شخصیت مولوي محمـدنبي محمـدي-رحمـه اللـه-، د لـوی





قائد ملا محمدعمر مجاهد-رحمه الله- شهید ملا اخترمحمد منصور-تقبله الله-، ستر غازي الحاج مولوي جلال الدین حقاني-رحمه الله- مولوي نصرالله منصور-رحمه الله- او قومندان سیف الرحمان منصور-تقبله الله- په څیر درویش صفته او اولو العزمه سرلارو رهبري ته ضرورت لري.

خو بل پلو بیا مذبذب،ماده پرست،موقع پرست،بې وفا او وارخطا ملگري د فکري جگړې په ډگر کې د سړي ملا ماتوي.

د فکرونو تعمیر او روښتیا د انسانانو د اړتیا وړ هغو توکو او موادو ته ضرورت نه لري چې دوی د آبادیو او عمارتونو په عمراني چارو کې ترې کار اخلي،

البته! پرلپسې او هر اړخیز جد و جهد او عرق ریزي ته اشد ضرورت لري.

د فکري یرغل په ناورین جگړه کې ماتې، تلفات او ضایعات تدارک او جبیره نه لري.

آبادۍ او هستوگنځایونه چې ونړیږي، تر پخواني حالت بیا په ښه ډیزائن او نقشه آبادیدلی شي،خو د فکري بنسټونو بیا رغونه له حده زیات کړاؤ او له برداشته وتلی زغم او زحمتونه غواړي.

فکري جگړه د مالي لگښتونو او انتظاماتو پر ځای فکري غنیٰ، بسیاینه، او د افکارو په راجلبولو او اصلاح کې په ځان باور پیدا کیدلو او فکري شیرازي ته اړتیا لري...

د فکري یرغل خلاف مبارزه کول کوم ځانگړي درسي نصاب او کتابونه، نه لري بلکې کامیاب فکري طرزالعمل، کامیابه دعوتي تگلاره، د داعي اخلاص، للهیت،تقوا، د خپل جهادي صف اتحاد،د خپلو مشرانو کامل اطاعت او ورته درناوی او د خلکو زړونه لاس ته راوړل دا ټول هغه څه دي چې د فکري مبارزې په لاره کې راسره پوره پوره مرسته کولی شي.

څوک چې غواړي د خپلې ټولنې د افرادو فکرونه د دښمنانو له یرغل وژغوري داسې اشخاص د فکري جگړې گټونکي اتلان او نومیالي غازیان کیدلی شي.

فکري جگړه د متقابلو خواوو تر منځ، د نظامي او مادي قواوو توازن او انډول نه غواړي، بلکې مبتکر او عبقري تفکر او د امت د ویښتابه په لار کې نبوغ او نوښتت ته اړتیا لري، تر څو د دښمنانو د هر دام څخه د خلاصون په لارو چارو لا د مخه خبرداری ولري.

له فکري یرغل نه دفاع حساس،بادرکه اوداسې ویښ ځوانان کولی شي چې لرلید او مطالعه یې پراخه،د دښمنانو په ټولو فکري تهجماتو واقف او د نړۍ له شیطاني طلسمونو باخبره او د خصم په ټولو مکرونو او فریبونو پوه او د سیاسي رنځونو په نبض پوهېدونکي ماهر طبیب ته ورته وي.

فکري جگړه دومره مهمه،نازکه او حساسیت لري چې د دې جگړې ماتې خوړلي جنگيالي بیا د بل کمربند او جنگي کربښې د جوړولو وړتیا له لاسه ورکوي او بیا د یوې بلې فکري معرکې تابیا نه شي نیولای.

کومو قومونو او ملتونو چې فکري ماته او شکست خوړلی هغوی بیا د نړۍ د ژوندیو قومونو له فهرست وتلي او تاریخ د محکومو او غلامو قومونو په نوم یادکړي دي.

شخصیتونه او افراد مړه او وژل کیدای شي،خو عقیده او فکر نه مري.

فکري جگړه کې افکار داسې مړه،ژوبل او ټپي شي چې زخمونه او ټپونه یې نه ښکاري خو درد او څړیکي یې بیا بطئ الزوال دي چې ژر آرام نه لري.

یادښت: زما دا لیکنه د فکري یر غل څخه د ژغورنې په اړه کوم پوره تحقیقي مضمون او مطلب نه گڼم،بلکې دا څو ماتې-گوډې کربښې مې اصلاً د یو متعهد ورور د لاندې پوښتنې د ځواب لپاره کښلې وې چې هغه پوښتلي و:"مونږه څنگه او په کومو طریقو کولی شو، چې د روان پراخ او هر اړخیز فکري یرغل مقابله وکړلی شو؟

ترڅو خپل ځوان کهول له عقیدوي او فکري انحراف او بې لارېتوب څخه را وگرزوو...؟"






# خلیلزاد، د کابل رژیم نماینده دی، که د ټرمپ..!؟

الاماره.. ورځنی تحلیل

تېره ورځ د اسلامي امارت له لوري په یوه رسمي اعلامیه کې د روان مذاکراتي بهیر په اړه اندېښنه څرګنده شوه چې ګویا د امریکا له لوري د ټاکل شوي مذاکراتي پلاوي پر نیت شک لري، چې هغوی په مذاکراتو کې د اصلي مسئلې پرځای پر نورو داسي خبرو وخت تیروي چې هغه د افغانستان اتلس کلنه غمیزه پای ته نشي رسولای. او دا کار ښایی مذاکراتي بهیر د ډېر وخت لپاره له ځنډ او خنډ سره مخ کړي. چې پړه به یې بیا د امریکایي لوري پرغاړه وي.

زلمي خلیلزاد د دې په ځواب کې رسنیو ته وویل: که طالبان خبري کول غواړي موږ تیار یو او که نه وي نو موږ د افغان حکومت ترشا ولاړ یو او جنګ ته ادامه ورکوو.

د زلمي خلیلزاد له دې خبرو نه په ښکاره څرګندیږي چې نوموړی دا مذاکراتي پروسه هم په افغانستان کې د امریکایي اشغال د تدوام لپاره د یو تکتیک په ډول کاروي، د خلیلزاد په دې جذباتي خبره کې د ټرمپ د هغه دریځ استائولي هیڅ نه ترسترګو کیږي چې وایی،

(په افغانستان کې د امریکا جګړه بې هدفه او نا ګټونکې ده، باید چې نور له دغې پرمصرفه او بې ګټې جګړې امریکا ځان راوباسي او افغانستان نور افغانانو ته پریږدي. د همدې مقصد لپاره یې خپلې کابینې ته له طالبانو سره د مخامخ تفاهم امر کړی دی.)

د خلیل زاد دا ناسنجیده څرګندوني فقط د ارګ میشتو چاراواکو د هغه موقف تائید کوي چې هغوی همیشه له امریکا غواړي چې په افغانستان کې د دوی ترځنګ پاتي شي، دوی ته ډالر ورکړي او د دوی د بقا لپاره اتلس کاله نور هم دا وینه زبېښونکې جګړه وغځوي.

اسلامي امارت پخپله اعلامیه کې هیوادوالو ته د مذاکراتي پروسې په اړه وضاحت کړی، د پروسې د نه پرمختګ وجه یې ورته څرګنده کړي چې امریکایي لوری له چل ول نه کار اخلي، پرهغه اجنډا چې لومړی یې ورباندي توافق کړی، له هغې یې مخ اړولی، نوري خبري کوي، نور اهداف تعقیبوي ځکه یې پروسه له ځنډ او خنډ سره مخ کړې.

د لومړیو غونډو پرمهال خلیل زاد د اسلامي امارت استائو ته د امریکا پیغام داسي اورولی و، چې امریکا فقط له دې تشویش لري چې افغانستان د نړۍ خصوصاً د امریکا د امنیت لپاره خطر پینښ نکړي، او بیا د ناین الیون غوندي واقعه رامنځ ته نشي- او په همدې خاطر یې دلته پوځونه راغلي، یعني دا ټکی د امریکا لپاره آساسي نقطه وه چې په اجنډا کې شامله شوه، او طالبانو ورته وویل چې زموږ هدف د بهرنیو ځواکونو په کلي توګه وتل دی چې دا ټکی بیا د طالبانو آساسي نقطه وګڼل شوه، او په اجنډا کې شامله شوه. دواړو لوریو پخپله خوښه ورباندي توافق وکړ چې په




راتلونکو غونډو کې به پردې ټکو بحث کوو او حتمي به ځان یوې مثبتې پایلې ته رسوو.

خو د ابوظبي د غونډې پرمهال خلیل زاد د اسلامي امارت استازي ته وویل، تاسو که غواړئ چې مسئله حل شي نو ترهرڅه وړاندي به له افغان حکومت سره خبري کوئ، او سعودي ته ما ویلي هغه به په راتلونکو ورځو کې غونډه جوړه کړي تاسو به له افغان حکومت سره خبري وکړئ.

طالب استازي ورته وویل زموږ او ستاسو په متفقه اجنډا کې خو دا ټکی نه و، او دا چې ته وایې له افغانانو سره خبري وکړئ، له افغانانو سره خبري کول زموږ خپله کورنۍ موضوع ده موږ دا اوس هم له افغانانو سره په مسلسل تماس کې یو، له تنظیمونو، سیاسینو، قومي مخورو او نورو افغانانو سره په میاشت کې درې ځله رسمي لیدني کتني لرو او د راتلونکي لپاره مکمله برنامه لرو. هیڅ ستونزه موږ نلرو.

او که ستا مطلب له افغانانو نه د کابل اوسنی ګډوسری رژیم وي، هغه چې د جانکیري په ابتکار رامنځ ته شوي، او د نړۍ په تاریخ کې دومره بې کفایته، مفسد، نا اهله، او د خپلو هیوادوالو وینه څښونکی قاتل رژیم نه دی لیدل شوی، نو دا هیڅکله افغانانو ته د منلو وړ نه دی او نه موږ هغه په رسمیت پیژنو، بیا هم موږ چې له افغانانو سره په هره سطحه خبره کوو، هغه د امریکایي الوتکو تر وزر لاندي نه کوو، لومړی به بهرني اشغالګر هرو مرو وځي ترڅو موږ په دې متیقین شو چې موږ خپلواک افغانان یو، بیا موږ د خپل منځي مسایلو د حل کولو پوره توانمندي لرو، او هیڅکله امارت د قدرت د انحصار په حق کې نه دی، او نه غواړي چې افغانان پخپل کور کې له خپله حقه محروم کړي، نو کله چې بهرني ځواکونه ووځي بیا که له موږ افغانانو سره د ستونزو په حل کې امریکا مرسته کوي، نوره نړۍ یې کوي، موږ یې هرکلی کوو.

دا چې نن خلیلزاد د اسلامي امارت د وضاحتي اعلامیې په مقابل کې له رسنیو سره خپل موقف داسي تکرار کړ چې که طالبان خبري کول غواړي، خبري کوو او که نه جنګ ته هم تیار یو.؛ نو دا په ډاګه کوي چې خلیلزاد اصلاً په دې فکر کې نه دی چې د امریکایي ځواکونو پروتلو له طالبانو سره خبري وکړي، هغه دلته د امریکا د دایم پاتي کیدلو په هوډ کې دی او د کابل د موجوده رژیم سره پر خبرو هم ځکه ټینګار کوي چې همدغه رژیم ورسره امنیتي ترون امضاء کړی او دوی ته یې دائمي اډې او د قضایي مصئونیت ترنامه لاندي د هر ډول جنایاتو ترسره کولو اجازه ورکړې ده.

نو که هرڅومره اسلامي امارت وایي چې موږ له خپلو افغانانو سره تفاهم هیڅکله نه رد کړی او نه یې ردوو، خو ستاسو د الوتکو تر وزر لاندي او ستاسو په خوښه موږ خپل منځي پریکړې نه کوو؛ بیا هم خلیلزاد وایي چې تاسو به د امریکایي اشغالګرو په موجودیت کې د کابل له موجوده رژیم سره خبري کوئ.

اسلامي امارت یوځل بیا ټینګار کوي چې د اشغال خاتمه او زموږ له خاورې امریکا ته د خطر پیښیدلو موضوعات باید له خارجي لوري سره زموږ د مذاکراتي پروسې اجنډا وي، او یوازي همدا ټکي کولای شي چې هم افغانستان له دې اتلس کلني غمیزې خلاص کړي او هم امریکا کولای شي چې له یوې بې ګټې جګړې نه ځان وباسي.

پای .......!

# په ګرين ویلیج د برید وروسته نا ویلي حقایق

لیکوال: احمد فایز

د ګرين ويليج څخه يوه باخبره سرچينه وايي؛ دوه افغانان ځلور نيپاليان چې د ګرين ويليج دروازه کې د سکيننګ دنده په غاړه درلوده او ۲۲ تنه نور لوړ رتبه بهرنيان دروازه کې د لومړي انفجار سره سم وژل شوي دي.

همدا رنګه سرچينه زياتوي؛دننه خو بلکل تباهي شوې هلته اوس ډېره ساحه کلابنده ده څوک هم نه پرېښودل کيږي مقصدي ځاى عکاسي کړي هغه برخه ډېره ويجاړه شوې چې ګڼ تعداد بهرنيان چې د کنيډا، نيپال او د بليک واټر قرارداد يانو يو مخفي مجلس درلود. دا ۲۲ تنه لوړ رتبه بهرنيان ګرين ويليج ته ميلمانه راغلي ول يا د وتلو حال کې وه او يا هم دستي رارسيدلي وه چې د بريد ښکار شول.

همدارنګه يو افغان پوځي افسر چې په کابل کې د خپل فاميل سره استوګن دی او په داخله وزارت کې برحال مامور( وظيفه) لري داسې ووېل؛ که چيرته دا چاودنه په ګرين ويلج د بهرنيانو په کمپ شوې وي امکان نلري چې کوم بهرنی دې ژوندی پاتې وي د چاودنې شدت او قوت ته که ځير شو جوتيږي بيخ يې ويستل شوی او دا ځل يو خطرناک هدف طالبانو تر بريد لاندې ونيو.

همدارنګه زياتوي چې ياد بريد وشودله طالبان اوس هم پياوړي او نه ماتيدونکی ځواک دی بايد نړۍ ترې څه فهم واخلي او نور له کبر او غرور ډکې ځرګندونې پريږدي، بې زايه فشارونه دې نه واردوي د طالبانو ټولې غوښتنې دې ومني کنا داسې لا ډير به ووژل شي او شاهدان به يي يو.

په کابل کې يو تن د پوهنتون زده کوونکی (محصل) د کابل بريد په اړه داسې څرګندونه وکړه؛ شا اوخوا ۷ بجې وې ستړی اطاق ته راغلم غوښتل مې يو څه له ځانه سره راوړي خوراک په اطاق کې وخورم د دوهمې مړۍ سره سم لمړی مې يوه جټکه محسوس کړه بيا تکه شنه رڼا خپره شوه او دومره قوي چاودنه (انفجار) رامنځته شو چې په ارزان قيمت، کابل پوهنتون، پلچرخي او نورو ډيرو ساحو کې زما ملګرو غږ اوريدلی وه او پس له قوي انفجار مسلسل دوه ساعته جګړه او ډزې سره تبادله کيدلې.

پس له دوه دقيقو برق هم کاټ شو توره تياره هيڅ په سترګو نه راليدل کيده د اطاق يوه ښيښه وه هغه هم راماته شوې وه کېڼ لاس مې د ښيښې په يوه وړه پرچه سطحي زخمي شوی وه د بلډنګ لاندې پوړ ته د راکيوتو سره سم ګورم چې ټول خلک راوتلي او د يو بل څخه د واقعې په اړه پوښتنې کوي چې سمدلاسه يو انبولانس زموږ د اپارتمان مخې ته ودريد او کوم خلک چې سطحي د ښيښو پواسطه خوږ شوي وه نګدې روغتون ته يوړل شول زه هم ورسره لاړم که څه هم زخم مې ډير نه ؤ.

روغتون ته له ډيرو لرې ساحو خلک راوستل شوي وه د روغتون دننه يو تعداد خبريالان موجود ول صحنې يې ريکارډ کولې او له ځينو خلکو يي پوښتنې هم کولې چې څه پيښه وه او کوم ځاى څخه راغلي ياست که څه هم موږ د ترسره شوي بريد له ځايه ډير لري وو دننه روغتون کې راته ويل د کيمرې مخته به ځانونه د پيښې اصلي هدف معرفي کوئ که څه هم ډيرو خلکو ورسره دا ونه منل.

زما د زخم د پټۍ نوبت راورسيد ډاکترانو يو لوی پاسمان ټوټه راته له خوږ شوي لاس تاو کړه داسې بريښيدل تا به ويل چې يا مې لاس مات شوی او يا هم ټول لاس مې ګنډل شوی او بيا پاسمان کړل شوی عکسونه هم راڅخه وويستل شو ډاکترانو ته مې ډير ووېل چې يوه وړه پټۍ که څه هم ضرورت يي نشته بايد ولګوئ زه سبا امتحان لرم ليکل نشم کړای خو دوی راسره ونه منل بلا اخره چې اپارتمان ته راورسيدم اکثره خلکو خندل او د ډاکترانو له لوري لګول شوې پټۍ يي بيرته لرې کولې نو ما هم خلکو ته ورته له لاس پټۍ لرې کړه او اطاق ته پورته شوم.

څو شيبې وروسته مې تلويزون چالان کړ د صحت وزارت وياند وحيد الله مايار په خبرو کې ويل چې د بهرنيانو پر کيمپ د بريد له کبله ۴۰ تنه ژوبل شوي چې ټول يي ملکيان دي نو ما ويل موږ خو د کمپ دننه نه وو چې موږ يې په دروغو رسنيو کې داسې وښودلو نو له ځان سره مسکۍ شوم داسې به سلګونه نور هم د افغان حکومت ادعاوو ته مسکۍ شوي وي چې موبايل مې راواخيست تر څو له نورو ملګرو حال واخلم څه ګورم چې موبايل سروس هم بند کړل شوی وه بيرته په مايوسۍ مې موبايل کيښود او ويده شوم.

پورتنيو حقيقتونو ته که ځير شو نو جوتيږي چې ياد بريد دقيقتآ په ګرين ويليج بهرنيانو ترسره شوی د کابل حکومت له لوري ټول (ويل) رسنيز شوي جزيات او پروپاګند اساس نلري په اصل کې دوی هغه جزيات خپاره کړي کوم چې د ښيښو له وجې په لرې پرتو سيمو کې سطحي خوږ شوي او د تشويش وړ ندي بهرنيانو ته د ور اوښتو تلفاتو کره او دقيق شميره تر ډيره نه رسنيز کيږي که احيانن رسنيز شي درې برخې مرګ ژوبله پټيږي يوه برخه هم په دروغو سره نشر ته سپارل کيږي.

بايد ووېل شي چې ګرين ويليج په افغانستان کې يوازينی د بهرنيانو بشپړ کلی( زرغون کلی) دی چې نګدې شا اوخوا عام خلک د اوسيدو او ازادانه تګ راتګ اجازه نلري، نو ځکه يې طالبان هم خورا مهم هدف بولي طالبان له دې وړاندې هم درې ځل تونيدلي چې په ياد کمپ کامياب بريدونه ترسره کړي چې له امله يې ګڼو بهرنيانو ته د مرګ ژوبلې سربيره ګڼ مالي زيانونه هم اړولي.

# د ريحانة الهند مولانا محمد زکريا وروستی شاګرد هم وکوچيد

لیکوال : مفتي محمدګل سعید

هسې خوله دې فاني نړۍ څخه دهرديني عالم رحلت اوددارالبقاءپه لورکډه کول دمسلمانانولپاره دغم اودېټولنې لپاره يو لوی زيان دی،خوځينوځينو ته الله تعالی دومره محبوبيت اومقبوليت ورپه برخه کړی وي چې مړينه يې بيا دټول عالم لپاره يوه دردناکه فاجعه بلل کيږي اوپه وفات يې ټول علماء،ديني تحريکونه اواسلامي نهضتونه يتيمان شي،چې يوهم له دغوعالمانوڅخه دبرکة العصراوريحانة الهند مولانا محمدزکريا وروستی شاګردمولانااحمدالله جان صاحب دی.

شيخ الحديث مولانااحمدالله جان [دډاګۍ مولاناصيب] هغه نامتوپښتون عالم ؤ،چې دژونددوره يې په علم ،عرفان ،مناظرو اوتدريس کې تيره شوه اويوه دنيايی له خپل علم اوفيض نه سيرابه کړه.دمرحوم مولانااخلاقی اومعاشرتی روحيې باندې تبصره کولوڅخه ځانته لوی دفترجوړيدای شي خوظاهره ده چې دنيتې له پوره کيدلونه وروسته مرګ حق دی اوروح نورپه تکامل شي لکه چې رحمان بابا وايي:

دانفس په مثال دبرق صورت فانوس دی

برق به څوک په فانوس کې اسيرنه کا

شيخ القران والحديث مولينااحمدالله جان (دډاګۍ مولينا صاحب) دمشهورعالم مولناعبدالحکيم زوی دمولينا محمدصديق وراره دمولينارحمت الله لمسی په ۱۳۳۵هـ ق کال دصوابۍ په ډاګۍ کې زيږيدلی دی.ددوی کورنۍ دپاکستان په خيبرپښتونخواکې په علم اوعرفان مشهوره اويوه فاضله کورنۍ ده.نوموړی دځلوروګلونوپه عمرؤچې پلاريې وفات شواوچې کله دشپږوکلونوعمرته ورسيدنوموربې بي يې هم له دې دنيا څخه رحلت وکړاودده تربيه يې بيا خويندوته ورپه غاړه شوه . ابتدايی زده کړې يې دډاګۍ کلي په ښوونځي کې وکړې.بيايې ديني علوموته مخه کړه اوله خپل اوښي قاضي امان الله رحمة الله عليه نه يې ددينې علوموزده کړه پيل کړه، منځنۍ زده کړې يې دزروبۍ له مولينا حبيب الله صاحب څخه وکړې،اوپاتې مروجه فنون يې په پيښورکې له لويو متبحرو عالمانوڅخه ولوستل. د لوړو زده کړولپاره سهارنپور ته لاړ او هلته يې دشيخ المشايخ ريحانة الهند او برکة العصرمولينامحمد زکريا عليه الرحمة دشاګردۍ وياړوګاټه .ده په سهارنپورکې له شيخ المشايخ مولينا محمدزکريارحمة الله عليه،مولينا عبداللطيف، مولينا عبدالرحمان کاملپوري، مولينا اشرف علي،مولينا منظوراحمد او مولينا اسدالله صاحب (رحمهم الله اجمعين ) نه لوړې زده کړې وکړې اوديوه نوميالي عالم په توګه راڅرګندشو.داکوړي مولاناعبدالحق رحمة الله عليه،مولاناشمس الحق افغاني اونوروګنړومشايخوهم ورته داحاديثو اعزازي سندونه ورکړي ؤ.مرحوم مولاناله فراغت نه وروسته دخپل کلي په جومات کې تدريس پيل کړاوپه زړه پورې تدريس يې وکړ.داچې نوموړی ډيرذهين

،فطين اودقوي ذهن خاوندؤنوروزانه به يى( ۴۸ ) كتابونه طالبانوته تدريسول اوپه دې توګه يې دتدريس لړۍ جاري وه.په ۱۴۰۷ق/۱۹۸٦م كال كې په ډاګۍ كې دمظهرالعلوم په نامه ديوې لويې ديني مدرسې دبنسټ ډېره كيښوده اوپه همدې مدرسه كې يې تدريس پيل كړ، چې ترمرګه پورې يې دالړۍ جاري وه .داحاديثو دوره به يې تدريسوله اوپه سلهاووطالبانوبه دده په مباركو لاسونودفضيلت پګړۍ تړلې. دروژې په مباركه مياشت كې به يې دقران عظيم الشان تفسيراوترجمه هم كوله،چې دلړې اوپرتوسيموځخه به ورته زده كوونكي راتلل اوله ځخه به يې فيض اوعلم حاصل كاوه.

## دكابل جامعه فاروقيه

دافغانستان دطالبانوپردين اوشريعت مين اسلامي تحريك دواكمنۍ په خپله شپږكلنه ناكراره موده كې نه هيريدونكې،ديني ،سياسي، اجتماعي داسې لاس ته راوړنې ترلاسه كړې دي چې له ده ځخه دمخه حكومتونويوه هم نه وه كړې،سره له دې چې هرډول امكانات هم ورسره ؤ،چې دهغوله جملې ځخه يوهم دديني مدارسوتاسيس ؤ.كله چې طالبانوكابل ښارونيوه اودافغانستان زياتره سيمې يې له خپل واک لاندې راوستې نودهيوادپه سطحه يې په ټولوولايتونوكې لوې لوې ديني علومو مدرسې جوړې كړې .ددغو مدرسوشاګردان به تكړه زده كوونكي اومبارزمجاهدين ول . دكال زياته برخه به په درسونواخته ؤ اودضرورت په وخت كې به دجنګ لومړيوكرښوته تلل اوهلته به يې دخپل دښمن په مقابل كې په ډېرشجاعت اوپوره ميړانه جهادته ادامه وركوله .دوۍ په كندهاركې جامعه عمرجوړه كړه،په جلال اباد كې يې جامعه صديقيه ،په خوست اونورووولايتونوكې يې هم دديني علومودتدريس اواشاعت لپاره لوى لوى مركزونه جوړ كړل اودتدريس لپاره يې دغومدارسوته دګوتوپه شمير وتلي عالمان دهيوادله ګوټ ګوټ اودپښتونخواله آيالت ځخه راټول كړل . په دې لړكې دطالبانودهغه وخت دمعارف وزارت وتلي وزيراو نوماند شخصيت ښاغلي مولوى اميرخان متقي صاحب (الله تعالى دې دلازياتو خدمتونولپاره اوږدژوند وركړي)په كابل كې د (الجامعة الفاروقية) په نامه يوه لويه ديني مدرسه جوړه كړه.دامدرسه په خپل وخت كې له ګردوځخه لويه ديني مدرسه وه،چې په خپله دافغانستان طالبانوزده كړې په كې كولې.دمدرسې مؤسس جناب متقي صاحب داستاذانو تنخا اودطالبانو غذائي لګښت له بيت المال ځخه وركاوه. ښاغلى متقي صاحب چې سياسي بصيرت اوپوهه لري،هځه يې داوه چې ددې مدرسې لپاره دګوتوپه شميرنامتومدرسين اوعالمان له لراوبرنه راټول كړي اودامدرسه دهيوادپه سطحه دعلم اوعرفان عظيم مركزوګرځي. هماغه ؤچې په خپل دې هدف كې كامياب شو اوعمده مدرسين يې دې جامعې ته راغونډكړل . داجامعه چې ګڼ شميرطالبان په كې روزل كيدل اوپه افغانستان اوپاكستان كې يې نيک شهرت خپورؤ ، د موقوف عليه اولوېې دورې په شمول ګردفنون په كې تدريس كيدل اومولينا حمدالله جان صاحب رحمة الله عليه په كې دصدرالمدرسين اوشيخ الحديث په صفت ټاكل شوى ؤ.مرحوم مولينا په همدې مدرسه كې زيات شميرطالبان وروزل چې دتدريس ترڅنګ يې دقرآن عظيم الشان ترجمه هم كوله،او په شريعت غړراديوكې به خپريدله .دده ترجمې ته به دطالبانودامارت لوړپوړي چارواكي اووزيران هم كيناستل.

مولينا صاحب چې دعمرزياته برخه يې دديني علوموپه تدريس كې تېره كړه اوزيات شميرشاګردان يې جامعې ته وراندې كړل ، دوه ځلې دجمعيت علماء اسلام دګوند لخوادمولينا مفتي محمودرحمة الله عليه په هځه قومي اسمبلۍ ته نوماندوټاكل شو،خومتاسفانه چې قومي اسمبلۍ ته يې لاره پيدانكړه اوپه يوځورايوپاتې راغى .دده دكشميرپه جهادكې برخه اخيستې اوداسلام دمقدس دين داعظيمه فريضه يې هم اداكړې ده . مولينا صاحب په عقيدوي لحاظ داسلافويوه ښه نمونه ؤ ، دده امثال ډيركم ترسترګوكيږي .دده دامام ابوحنيفه رحمة الله عليه مسلک ته په زړه پورې خدمتونه وكړل اوپه دې لاره كې يې بې دريغه قربانۍ وركړې دي .دفكراونظرپه لحاظ زمونږداسلافو بهترينه نمونه ؤ او هروخت يې دلامذهبواولاروركوخلكوسره

مبارزې اومناظرې کړي دي .دحق دلارې لاروی ؤ اوددښمنانو دسترګوخار ګنړل کيده نوموړی د علم او تدريس په ډګر کې يو جامع عالم، د دعوت اوتبليغ په ډګر کې يو عظيم مصلح اودعوتګر، د سياست او حکومت ولي په برخه کې يو ځيرک سياست پوه او په ولسي او ټولنيزو مناسباتو کې يو ټول منلی ملي او اجتماعي شخصيت و.

د مولانا صاحب ټول ژونداسلامي علومودخدمت،تدريس ، تصنيف او سياسي جهداومبارزې نه عبارت ؤ اومړينه يې يوه لويه اونه جبرانيدونکې ضايعه ده،الله تعالی دې دمرحوم اومغفورکړي ديني اوعلمي خدمتونه قبول کړي اوورثه ؤ اوشاګردانوته دې صبراوزغم ترڅنګ دهغه په مسيرباندې داستقامت اوتللوتوفيق وربه برخه کړي.

مولانااحمدالله جان صاحب جامع ،وتلی ديني عالم اودعرفاني افکارو خاوندؤ.له طالبانواومجاهدينوسره يې دزړه تعلق اومحبت درلود،بالخصوص زموږپه هيوادباندې دپخواني شوروی يرغل په ضد دافغانانودجهادله دورې نيولې داوسني امريکايي يرغل په خلاف دتاريخي جهادتردورې دخپلوافغاني ورونوپه ننګه اوملاتړولاړؤ اودژوندترپايه يی داسلامي امارت لارويانوته دعاګانې کولې.

## تصوف اوعرفان:

مولناصاحب دظاهري علومو ترڅنګ په تصوف کې هم لوی لاس درلود، دنوښار دشيخ المشايخ مولينا عبدالسلام عليه الرحمة(پيرسباک باباجي صاحب) لاس نيوی يی کړی ؤ.اودهغه مشرخليفه ؤ.ده ته صندل باباجي عليه الرحمة،مارتونګ باباجي اومولانامحمدنذيرطرازي دتصوف په څلور وواړه طريقوکې اعزازي سندونه ورکړي ؤ.

مولينا صاحب له غيرمقلدينواوپنج پيرانوسره په عقيدوي لحاظ ډيرضددرلود اوله هغوی سره يی زياتې مناظرې کړيدي.ده په حرمينوشريفينوکې له پنج پير مولناصاحب (محمدطاهر)عليه الرحمة سره اوهم له يووهابي عالم سره مناظرې وکړې اوپه هغوی دواړوبرلاسی شوچې بياورته دمناظرحرمين اومدرس حرمين القاب ورکړل شول. مولناصاحب يوځل په حرم شريف کې دقران عظيم الشان دتفسيراوترجمې تدريس پيل کړ ،چې ۱۳سيپارې يی هلته تفسيراوترجمه وکړه اوپاتې ۱۷سيپارې يی دسمندرپه اوږده سفرکې تدريس کړې چې په دې توګه يی دتفسيردوره پای ته ورسوله.ارواښاد مولانا يوعظيم مربي ،کامل ولي اوسترمحدث ؤ،چې په نقلي اوعقلي علوموکې يي لوی لاس درلود.

## تصنيفات:

(۱) البصائرلمنکري التوسل بأهل المقابر(داکتاب يی په اختلافي مسائلوکې ليکلی دی اودترکيې دحکومت لخوا ځوکرته چاپ شوی دی.

(۲) مجمع الاشعار(دشعرونوټولګه)

(۳)په وظائفوکې رساله

(۴)دبخاري شريف شرحه

(۵)دقران کريم تفسير(مظاهرالقران فی خلاصة التفاسير)

خلاصه داچې مرحوم مولانا بحرالعلوم، مجمع العلم والفيضان لوی شخصيت وه اوډپاک نفس مطمئنه اوراضيه حيثياتوخاوندوه مونږده ته په عالم قدس کې دحق تعالی ذات اقدس له حضوره دمرضيه مقام مونډل غواړو.

رينښتياخبره داده چې ددې لوی علمي شخصيت دفضيلت داسمان د لمروفات يوازې دده دکورنۍ لپاره مصيبت نه دی بلکه دټول پاکستان اواسلامي جامعې لپاره خصوصاً دعلم اوفضل خاوندانولپاره لوی مصيبت اونه جبرانيدونکې ضياع بلل کيږي.

عربی شاعروايی:

**اذامات ذوعلم وفتوی**
**فقدوقعت من الاسلام ثلمة**

مولناپه اسلامي تاريخ اوسيرت کې پروفيسر،په تصوف کې دمحی الدين ابن العربی نعم البدل اوپه فلسفه ،منطق اوطب کې دابونصرفارابی اوشيخ ابن سينادافکاروخزانه اوپخپله ددې فنونو نامتومجتهد،معانی اوبيان کې دتفتازانی مثيل،اوپه علم اخلاق کې دجلال الدين دواني ،په اسلامی تاريخ کې دابن خلدون اوابن کثيرسيال ، په احاديثوکې دعلامه شاه انورشاه کشميری لوی نائب اوپه تفسيرکې دامام رازی درازونو،دفقهې په احکاموکې دحضرت امام ابوحنيفه رحمه الله دافکارواودمذهب په حصه کې دمقابل سره يوسترمارشال اودفلسفة

الاحکام والمواعظ دبیانولودحلقې دویم غزالي ؤ.

دمرحوم مولاناډیرشاګردان شته چې هریویې لوی علمي شخصیت دی خواوس هم دمولیناپه استاذی اودهغه څخه داستفادې کولوپه حقیقت معترف دي اوهریودغه اعتراف دخپل علمي مقام اولیاقت داثبات لپاره قاطع برهان ګڼي. دغه نومیالی عالم او عارف په افغانستان او پاکستان کې په زرګونو شاګردان لري چې هر یو شاګرد یې د خپل وخت نامتو عالم ګڼل شوی دی.

**مړینه اوهدیره:**

دمرحوم مولانامطمئنه روح دده دفانوس جسدڅخه دهفتې په ورځ دوتلواراده وکړه اودکل من علیهافان قطعي فیصله دخدای پاک په حکم په ده باندې دتطبیق کیدومرحلې ته ورسیده اودعلم دالوی غرد(۱۰۵)کلونوپه عمرپه حق ورسید.دروان کال (۱۴۴۰هـ ق )دجمادی الاولی دمیاشتې په (۷) مه ،چې د۲۰۱۹میلادي کال دجنوري د ۱۳مې نیټې سره سمون خوري، دیکشنبې په ورځ دماسپښین په دوه بجویی دجنازې لمونځ دنومورې دلمسي- مولانااسدالله مظهري په امامت اداکړای شو. دنومورې په جنازه کې دانسانانوداسې لوی سیلاب ؤچې شمیرېې ناشونی ؤ.ویل کیږي چې دغورغشتو دمولانا نصیرالدین اودشاه منصور دمولانا عبدالهادي (شاه منصور باباجي) په څېردده په جنازه کې دګڼون والوشمیر له شمیره زیات ؤ. دپاکستاني میډیاله خولې چې په جنازه کې یی اته لاکه کسانوشرکت کړی ؤ. د مرحوم جنازه په موټر کې په داسې حال کې هدیرې ته یووړل شوه چې په زرګونو خاصو او عامو خلکو ورسره پیاده مسنونه مشایعت کاوه، او پخپله پلرنۍ هدیره کې دخپل مرحوم پلاراونیکه ترڅنګ خاوروته وسپارل شو. مشایخو اواکابرو عالمانود مرحوم مولینا پګړۍ دنومورې دزامنو (مولانا اشفاق الله، مولانا لطف الله اومولاناانعام الله اودلمسي مولانااسدالله مظهري په سرورکیښوده او لمسی یې مولانااسدالله مظهري د حضرت شیخ صاحب ځای ناستی وګرځول شو.مولیناصاحب د جرأت، استقلال او په خپل مشن کې د استقامت او د دعوت او تدریس ډګرونه خپلو ځای ناستوزامنواولمسیانوته پریښودل، خپله ترې لاړ او د اجل داعي ته یې لبیک ووایه. الله تعالیٰ دې دوی ته هم د لوی پلار په نقش قدم د تللو توفیق نصیب کړي.

دجنازې تراداکولومخکې دجمعیت علماء اسلام دګوندنایب امیرمولانافضل علي حقاني.د احمدعلي لاهوري رحمه الله شاګرد مولاناعبدالرحمن (تهانې باباجي) دتخت بایي. دمفتی محمد فریدرحمه الله خلیفه مجازمولاناصدیق احمدقریشي.

دمولانا زکریارحمه الله خلیفه مولاناعزیزالرحمن هزاروي. دجمعیت علماء اسلام ګونددهزارې امیرمفتی کفایت الله. دشیرګړ دارالعلوم مهتمم شیخ الحدیث مولانامحمدقاسم . دشاه منصورشیخ الحدیث نورالهادي(صاحب حق ) . دمفتی فریدرحمه الله فرزند ارجمندخواجه حسین احمد.دجمعیت علماء اسلام ګوند لخوا دپښتونخوا امیرمولاناګل نصیب خان.دپنجاب مولانا قاضی ارشادالحسیني. دپیښوردقاسم علي جومات خطیب اود تحفظ ختم نبوت امیرمولانامفتی شهاب الدین پوپلزی او دجمعیت علماء اسلام دګوند دمشرمرحوم مفتی محمود فرزند ارجمند مولاناعطاء الرحمن تقریرونه وکړل اودده محاسن، صفات،کمالات،علمي سیر، سیاسي جدوجهد،اصلاحي خدمتونه او.......یي خلکوته بیان کړل.

شیخ الحدیث مولانا مغفورالله باباجي، شیخ الحدیث مولاناعبد الحلیم دیرباباجي،شیخ الحدیث مولانا عبدالرشید شینواری دننګرهار، مولاناشجاع الملک ،مولانا محمد سعیدهاشمي،دطریقت مرشدقاري بشیراحمد صاحب، اونور زیات خواص راغلي ؤ،چې دټولو نومونه راوړل ناشونی دي.کله چې مولاناصاحب خاوروته وسپارل شو،نولړ وروسته دجمعیت علماء اسلام ګوندامیرمولانافضل الرحمن صاحب هم تعزیت اوفاتحې ته راغی اودمولاناصاحب زامنواوقریبانوته یې دتسلیت مراتب وړاندې کړل.

**اولادونه:**

مولیناصاحب څلورلونې اوڅلورزامن لري.مشرزوی یی مرحوم پروفیسر مولینافضل الله سلیم (ګولډمیډلسټ)، دویم یی مولاناانعام الله ،دریم یی

مولیناالطف الله جان چې دمدرسې ناظم دی،څلورم یې مولینااشفاق الله خان نومیږي.

**په پای کې هغه چې ښاغلي الفت صاحب دزړه ویناد علامه سیدجمال الدین افغانی دجنازې دراوړلوپه مناسبت کړې ده ، زه ځان مجازګڼم چې دهغې څوغوره اشعاردمرحوم مولینادجنازې وړلو او فاتحه اخیستلوپه نسبت راوړم:**

**بې حسابه ځاځکي توی په بحروبرشي**
**له لکونو کروړونو یوګوهرشي**

**مرغلرې ډیرې اوزي له دریابه**
**کوم یوه په کې زیوردغاړې ورشي**

**عالمونه پیداکیږي بې حسابه**
**په دنیاکې دځوتنوتاج په سرشي**
**دخلقت له کارخانې نه کله کله**
**په جهان پیدایوبل شانې بشرشي**
**چې رڼایی په ملکونوکې خپریږي**
**ټول عالم لره ځرګنده لکه لمرشي**
**پښتنه مورهسې زوی لوی کاپه غیږکې**
**په وطن اوپه جهان نامي پسرشي**
**ډیرپوهان ورته سرټیټ په شاګردۍ کړي**
**ډیرلویان یې په تعظیم مخې ته ورشي**
**همیشه یې قدرکیږي په عالم کې**
**څوک چې لوی په علم وفضل اوهنرشي**
**هسې نوم هسې نشان یې شي په برخه**
**چې لوی فخردملت اوهم ټبرشي**
**څوک چې وریې شي مزارته که بیناوي**
**ورته بیرته بیادپوهې لوی دفترشي**

# د یوه صحابي ځینې پوښتنې ستر پیغمبر ﷺ څنګه ځواب کړې؟

۱- اې پیغمبره ﷺ! په کوم شي ګناه ښئل کیږي؟

رسوالله ﷺ: په اوښکو، عاجزۍ او ناروغۍ سره.

۲- زه غواړم چې ستر عالم شم، څه وکړم؟

رسوالله ﷺ: تقوی' غوره کړه، عالم انسان به شې.

۳- غواړم چې شتمن شم، څه وکړم؟

رسوالله ﷺ: قناعت کوه، مالدار به شې.

۴- غواړم چې یو نېک انسان اوسم؟

رسوالله ﷺ: خلکو ته ګټه رسوه.

۵- غواړم چې عادل انسان شم؟

رسوالله ﷺ: کوم څه چې ځانته خوښوې، هغه نورو ته هم خوښوه.

٦- غواړم چې د الله ﷻ په دربار کې ځانګړی مقام ولرم؟

رسوالله ﷺ: ډېر ذکر کوه.

۷- غواړمه احسان کوونکی واوسم؟

رسوالله ﷺ: الله ﷻ ته داسې عبادت کوه، ګویا ته هغه وینې یا داسې چې هغه تاویني.

۸- غواړم چې ایمان مې پوره اوسي، څه باید وکړم؟

رسوالله ﷺ: ښه اخلاق ولره.

۹- غواړم چې د الله ﷻ تابع داره انسان شم؟

رسوالله ﷺ: فرایض په کلکه سره ونیسه(مه یې قضا کوه).

۱۰- غواړم چې په قیامت کې په نور (رڼا) سره پاڅېږم؟

رسول الله ﷺ: پر خلکو له ظلمه ځان وساته.

۱۱- غواړم چې الله ﷻ په ما رحم وکړي؟

رسوالله ﷺ: ته پر نورو خلکو رحم کوه.

۱۲- په ګناهونو کې کمی غواړم؟

رسوالله ﷺ: په کثرت سره اِستغفار کوه.

۱۳- غواړم چې د ښه عزت څښتن شم؟

رسوالله ﷺ: خلکو ته لاس نیول پرېږده (سوال، خیرات، او طامع مه کېږه).

۱۴- څنګه مې روزي پراخه کړم؟

رسوالله ﷺ: تل په اوداسه ګرځه.

۱۵- کوم شی د دوزخ اور سړوي؟

رسوالله ﷺ: روژه نیول.

۱٦- کوم څیز د الله ﷻ غصه کموي؟

رسوالله ﷺ: په پټه صدقه او صله رحمي.

۱۷- تر ټولو غټ بد کار کوم دی؟

رسوالله ﷺ: ناسمه رویه او بد اخلاقي.

۱۸- تر ټولو ستره نیکي څه ده؟

رسوالله ﷺ: نېک اخلاق، عاجزي، په غم صبر او رضا بالقضی'.

۱۹- غواړم چې زما ستر او پرده وشي؟

رسوالله ﷺ: ته له نورو خلکو پرده کوه.

۲۰- له رسوایي او شرمندګۍ څخه خلاصیدل غواړم؟

رسوالله ﷺ: له زنا څخه ځان ساته.

۲۱- څه وکړم، چې دعاوې مې قبولې شي؟

رسوالله ﷺ: حرام مه خوره

۲۲- د الله ﷻ له قهر څخه د ځان ساتل غواړم؟

رسوالله ﷺ: په خلکو باندې غصه مه کوه.

۲۳- غواړم چې په الله ﷻ او رسول الله ﷺ پې ګران شم؟

رسوالله ﷺ: کوم څه چې الله ﷻ او پیغمبر ﷺ ته یې ګران دي، هغه خپل محبوب جوړ کړه.

۲۴- غواړم چې د قیامت پر ورځ الله ﷻ ته پاکیزه ور مخکې شم؟

رسوالله ﷺ: له جنابت وروسته سم دستي غُسل کوه.

**منبع: (کنزالعمال - ۴۴۱۵۴)**

# مذاکراتي عمل باید شفاف وي

عبید-تنویر

## او پوښتنې را ولاړې نه کړي

په افغانستان اوسوریه کې د روانې جګړې دخاتمې او کرارۍ په باب دامریکادولسمشر ـ ( ټرمپ) ورستیوصریحو څرګندونو اویولړ عملي ګامونو داهیلي راوټوکولې چې نوموړی غواړي امریکا له هغو مغلقو اوپیچیده وو بحرانونو او بې پایلو جګړو راوباسي کوم چې امریکا په لوی لاس رامنځته کړي اواوس ور ته ددرانه سرخوږۍ اورسوایی سبب ګرځیدلي

ټرمپ له سوریې څخه دامریکایي پوځیانو وتل اړین وبلل اووړمه ورځ یې دانخلا لړی پیل کړه، دهغه ترڅنګ یې اعلان وکړ چې دافغانستان په جګړه کې دوئ له ناکامۍ او ستونزو سره مخ دي پوځي سرچیني اوجنرالان ورته مسلسل دروغ وایي نو اړ دي چې له افغانستان څخه هم خپل پوځیان راوباسي اودهمدې لپاره یې له طالبانو سره سولییزې هڅې اومذاکرات پیل کړي ترڅو دټولو امریکایي عسکرو وتلو ته زمینه برابره شي

اسلامي امارت هم په همدې منظور چې امریکایان په افغانستان کې دروانې ۱۸ کلنې جګړې اصلي لوری اوجهت دی امادګي وښوده ترڅو دافغانستان دمعضلې دحل په باب دامریکا دبهرنیو چارو دوزارت له لوري دګمارل شوي استازي ځلمي خلیلزاد سره دخبرو اومذاکراتو بهیر پرمخ یوسي، چې د قطر او ابوظبی ناسته یې عملي ثبوت وو

دابوظبی له غونډې ورسته ټاکل شوي وه چې بله غونډه به دجنورۍ په ۸- ۹ نیټه دقطر هیواد په پلازمینه دوحه کې سرته رسوي داسلامي امارت مذاکراتي پلاوي په دې نیت چې یاده غونډه به په ټاکلي نیټه جوړه شي اورغنده مذاکرات به پکې ترسره کیږي امادګي وښوده، چې متاسفانه دامریکایي پلاوی مشر خلیلزاد یوناڅاپه اوله توقع خلاف اعلان وکړ چې هغه ددوحې دغونډې له دائیریدو وړاندې غواړي دهندوستان، چین اونورو هیوادونو ته سفرونه وکړي.

دکتونکو له نظره دخلیلزاد دغه نازیباحرکت او عهد شکنی له شک پرته داپوښتنه راولاړه کړه چې خلیلزاد لکه چې اوس هم دافکر کوي چې دسیاسي عمل اوهڅو ترڅنګ دیولړ پرسوده او بې معنا فشارونو حربې وکاروي او له دغه کار څخه دکابل مزدور شریدلی رژیم ګروبیدونکي حالت ته دځو ورځولپاره نوره تکیه اوځه طمعه ورکړي

که خبره همداسې وي اوخلیلزاد قصدا دغه ناغیرې اوخلاف ورزي ترسره کړي وي فکرکووچې نوموړي په دې حساس پړاو اوداعتماد سازی په خوراناز کوشیبوکې دیوډول تیروتني ارتکاب ته ملاتړلې

ځکه داسلامي امارت اوامریکا ترمنځ دخبرو پیل شوی بهیر ډیرباریک اوپه ابتدایي مرحلې کې قرارلري او دواړو لوروته په کار دي چې له معمولي جټکو اودبې باوری له هرډول شمال څخه یې وژغوري

نو ښه به وي چې خلیلزاد دخپل ورسپارل شوی ماموریت شفافیت اوروغ نیتی ته کلک متوجه ووسي او له هغو داغونو اوشکوکو یې مصؤن وساتي چې دمذاکراتو له مستوا او کچ میچ سره سمون نه خوري .

ش : همدرد

# د یو فریب کار جاسوس (لارنس آف عربیه)

## مکاري او دصحرائي عربو ساده ګي...

هرکله چې کفري ځواکونو په پوځي ډګر کې دمسلمانانو په لاس خپله ماتې لیدلې او یا پکې دکلک مقاومت سره مخ شوي ، هغوی ددې پر ځای چې دجګړې اومقابلې نه لاس په سرشوي وای دمسلمانانو پرخلاف خپل جګړه ئیز تاکتیک ته په تغیر ورکولو سره یې خپل شکست په بري بدل کړی او مسلمانانو ته یې په ځوچنده زیات قوي نقصان او تاوان رسولی

نن ورځ موږ ( افغانان) دیو ولس په توګه دتاریخ دیوې سترې جګړې تیریږو او دنړۍ دیوډیر لوعصري ځواک له لوري پر موږ یرغل شوی دی ، زموږ خاوره او هیواد یې اشغال کړی او په مقابل کې یې دغیور افغان ولس په مرسته اسلامي امارت په یو تاریخي او دفاعي جهاد او مقاومت لګیادی ،له نیکه مرغه چې اتیا په سلو کې امریکا په پوځي ډګر کې شکست خوړلی ... او دتیښتې او منډې په حال کې ده.... خوبیا هم دتاریخ د یوشمیر لوستونکو سره اندیښنه شته چې هسې نه امریکا په پوځي ډګر کې دشکست غچ دکومې بلې لارې څخه واخلي او دهغې په مقابل کې دافغانانو روان بری (خدای مکړه ) په شکست بدل نشي او ترډیره حده داندیښنه په ځای هم ده ولې کله چې موږ تاریخ ته مراجعه وکړو نو یقیناً په تاریخ کې داسې پیښې شته

چې لومړی یوچا په پوځي میدان کې خپل دښمن مات کړی خو کله چې هم هغه مات شوي دښمن خپل جنګي تاکتیک ته لږ تغیرورکړی ناځاپه یې خپل شکست په بري بدل کړی

ددې لپاره چې په اسانه او لنډه دغه تاریخي حقیقت وفهموو چې استعمارګرو دساده تاکتیکونو په غوره کولو سره ډیرې لویې او تاریخي بریاوې د خپل ځان کړې، په لنډه ماضي کې دبرتانوي ښکېلاک او دترک عثماني خلافت ترمنځ دجګړې شالید ته ور ځو او هلته ګورو چې کله دجزیرة العرب په نیولو کې برتانویان په پوځي میدان کې ترکانو مات کړل او هغوی یې دوسپنو نینو چیچلو ته اړکړل !خو هغوی دترکانو دغه پوځي بری دیو ساده تاکتیک په غوره کولو سره د تاریخي شکست سره مواجه کړ دکوم له امله چې دځو ښارونو پرته نور ټول جزیرة العرب دبرتانیې لخوا اشغال او د عثمانیانو له لاسو ووت

ډګرمن تامس ایډورډلارنس( ۱۶اګست ۱۸۸۸ــــ ۱۹مې ۱۹۳۵)دبرتانوي پوځ هغه افسرو چاچې دلومړي نړیوال جنګ پر مهال دعثماني خلافت واک لاندې عربي سیمو( جزیرة العرب) کې د خلافت په ضد عربي ملت پالان بغاوت ته و هڅول هغوی یې منظم و منسجم کړل او بیا یې دخپل هیواد د ګټو لپاره

استعمال او استخدام هم کړل ،په همدې کردار ترسره کولو هغه دنړیوال شهرت نه برخمن شوی او په همدې وجه ورته دلارنس آف عربیه لقب یا خطاب ورکول شو ، هغه د ملت پالنې په نوم دبغیانو په تنظیمولو او پورته کولو سره عربي سیمې ( اوسني عرب هیوادونه) دعثمانیانو دواک څخه بیرون کړې او عربان یې داسلامي خلافت په رنګولوپسي راپورته کړل

کنه په ۱۹۱۵زکې څه مهال چې انګریزانو په عربي سیمو دیرغل په نتیجه کې دترک پوځ او مجاهدینو لخوا غابن ماتونکی ګذار وخوړ او هغوی ( انګریزان) یې دوسپنې نینوچیچلوته اړکړل په خاصه توګه د۱۹۱۶ د ترک ډګرمن خلیل پاشا له لاسه کومو لس زره انګریزانو عبرت ناک او دردناک شکست وخوړ ، دهغه په وجه دانګریزانو باور راغی چې دپوځي یرغل دلارې عثمانیانو سره جنګ کول ګران دی، هغوی دخپلې یوې پخوانۍ فارمولې(ببل یې کړه ایل کړه) له مخې لارنس ته دنده ورکړه چې ژر دعربو د محلي سردارانو او مشرانودباور ترلاسه کولوهڅې پیل کړه اوددترکانو پخلاف دملت او ژبنۍ کرکې په خورولو دترکانو په ضد د پاڅون او بغاوت رامنځته کولو کوښښ وکړه

لارنس چې له وړاندې ښه روانه عربي ویله، هغه عربي کالي په تن کړل او د ملت او ژبې په نوم دعربانو پورته کولو دسازش په جوړولو یې کار پیل کړ ، دلته دیادونې وړده چې لارنس له وړاندې څخه هم په دې کار کې تجربه اوسابقه درلوده هغه آن په ( ۱۹۱۱ز) کې دبصرې په یو هوټل کې خپله یوه استخباراتي شبکه پرانیستې وه، په کومه کې چې ور سره دوه عربي ځوانان هم ملګري ول ،په دغه زمانه کې هغه سره یوامریکائي یهودي هلک هم یوځای شو، هغه دده سره ډیر کومک وکړ ، داچې هغه ډیر ښکلی و، عربي ځوانان به یې دخپل ښایست په لومو کې نښلول اوبیا به یې په ترکانو باندې بریدونو ته هڅول!! انګریزانو لارنس ته هدایت وکړ چې دبرلن څخه بغدادته دریل ګاډي پټلۍ جوړیږي، ته سملاسي په اړه یې بشپړ معلومات راټول کړه او لندن ته یې واستوه! او هم یوشمیرداسې مؤثر خلک غوره کړه چې په اسانه د هغوی ضمیرونه پیرل کېدای شي

دغو ورځو کې دعراق او برلن ترمنځ داورګاډي پټلۍ دفرات تر سینده غځېدلې وه او دسیند بره په پل جوړولو کارروان و، لارنس دتاریخي اثارو دکارپوه په توګه راغی هغه ته څېرمه یې کندنې پیل کړې ، دتاریخي اثارو په نوم کندنې په ظاهره دهغه بهانه وه، اصلي موخه یې دبرلن او بغداد ترمنځ دریل ګاډي پټلۍ جوړیدو جاسوسي کول و، دهمدې ځایه به لارنس هره ورځ معلومات لیکل او لندن ته به یې استول

هم هلته لارنس دخپل بل هدف ترلاسه کولو لپاره دغدارانو د مندلو تلاش پیل کړ، دپوره زیار وروسته یې دترک پارلمان یوه غړي سلیمان فائیزي ته ځان ورساوه او هغه ته یې دښکار لومې خورې کړې ،دزیاتو پیسو دلالچ په ورکولو یې برتانیې سره دهمکارۍ بلنه ورکړه، لیکن فائیزي چون هوښیار سړی و او په ارادو یې پوی شو ، هغه په ډیر حقارت ددغه وړاندیز رد کړ او هم یې ورته په مخ یوه درنه څپېړه ورکړه! او له ځانه یې وشاړه، خو لارنس مایوس نشو ، هغه یو زیررک انګریز و، دسلیمان فائیزي څخه یې ژر ځان ګوښه کړ او دېښه زیات غور او سوچ وروسته یې پریکړه وکړه چې دجزیرة العرب په سیاسي او لوستو خلکو کې دبرتانیې لپاره باوري خلک مندل امکان نلري، ولې چې لوستي او باسواده عربان دبرتانیې له عزایمو نه خبر او اګاه دي، هغه دصحرائي( بدوي) عربانو دباور ترلاسه کولو پریکړه وکړه او ددې لپاره یې دبدوي عربانو دتیرایستلو لپاره دمسلمانانو د مذهب او دین لباس اغوستلو اراده وکړه او لاړ دبصرې په یو مسجد کې یې داسلام قبلولو اعلان وکړ، عربي کالي یې په تن کړل لاړ په بدوي عربانو کې یې دخپل هدف لپاره کارپیل کړ او هغوی سره دهغوی په خیمو او کیږدیو کې دیره شو ، په هغوی (بدوي عربانو) یې دبرتانوي پونډونو د بوجۍ خوله هم ورخلاصه کړه اوهره میاشت به یې دوه لکه پاونډ پر هغوی ویشل، په دې سره نالوستي او دنړۍ دحالاتو او

دمسلمانانو داجتماعي مصالحو څخه غافل اوناخبري بدویان دهغه دومره کلک ملاتړي شول چې په ډیرو صفتونو به یې نه مریدل او ورته دخپل مهربان، محسن او مربي القاب یې ورکړل ، دبدوي عربانو په واسطه لارنس خان د ترکانو لخوا دمکې مکرمې تروالي حسین الهاشمي پورې ورساوه اوهغه یې هم ډیرژر پخپله غوره او چربه ژبه گمراه کړ ، په شیشه کې د پاسبان حرم دبندولو وروسته لارنس ټول پام دحسین الهاشمي زامنو( عبد الله، فیصل، زید، علي )ته کړ او هغوی ته یې ویل: سادات تاسویاست او بیا هم دنورو ترلاس لاندې غلامي کوئ! په پیل کې هغوی څلور واړو دلارنس خبرو ته چندان توجه ورنکړه خو دخپل اصرار او ټینگار کرار کرار دترکانو څخه متنفر کړل آن تردې چې یوه ورځ هغوی دخپل کور دکړکۍ څخه په ترکانو ډزې وکړې او په دې سره په عربو کې دترکانو خلاف بغاوت پیل شو او په دې سره لارنس ډیر خوشال شو چې بس هڅو یې رنگ راوړو او لندن ته یې دخپلو بریاوو اطلاعات ولیږل چې اصل لوبه اوس پیل شوې ژربه برتانیا بری ترلاسه کړي

لارنس دبدوي عربانو ترمنځ دمحسن او مربي مقام مندلی و، په ټول جزیرة العرب کې هغه دترک عثماني خلافت پرضد ورته نور بغاوتونه منظم کړل، هغه دبدوي عربانو سره یوځای دترکې پوځیانو په قافلو به حملې کولې په خاصه توگه ترکیې نه حجازته دریل گاډي دروانې پټلۍ دمخنیوي په لړ کې یې د



بدوي عربانو څخه قوي کارواخیست اوځای په ځای یې د ریل پټلۍ جوړولو په کارگرو باندې بریدونه کول په ۱۹۱۷ز کې یې دترک پوځیانو نو په یو ریل گاډي باندې حمله وکړه او پکې اویاتنه ترک پوځیان یې ووژل

په پوځي ډگرکې عثماني پوځیانو برتانانویان او نور متحدین پرینښودل چې هغوی جزیرة العرب ونیسي. ، زکه په جنگ کې هغوی په انگریزانو او متحدینو باندې برلاسي وو،خو ښکاري چې استخباراتي څار یې کمزوري و ، دعربي سردرانو او بدوی عربانوڅار او مراقبت ته هغسې چې ضرورت وو دوی نه کاوه او نه دهغوی ترمنځ دانگریزانو دجاسوسۍ شبکو فعالیتونو ته متوجه نه ول بالاخربرتانیې دلارنس آف عربیه په واسطه ټول بدوي عربان دترکیې پر ضد بغاوت ته اماده کړل او په دې توگه یې ځان ته دلږو پیسو په عوض کې دبدوي عربو یومستقل لښکر کرایه کړ خو عثمانیانو بیا هم ونکړای شول چې دلارنس آف عربیه دجاسوسۍ کړنو پهخلاف گام پورته کړي، دلارنس اف دعربیه په وینا: یواځې هغه پخپل لاس ۷۹ دریل پټلۍ پلونه الوزولي هغه وایي: په دې کار کې دومره ماهر شوی وم چې پلونه مې په داسې طریقه به الوزول چې په سائنسي توگه به ریزه ریزه شول خو بیا به هم پخپل ځای ولاړ وو، ددې گټه به موږ ته داوه چې هرکله به ترکانو غوښتل چې هغه له سره بیا ورغوي ، مجبور وو چې ټول و نړوي او بیا یې ملبه له هغه ځایه بل ځای ته نقل کړي او د بل دپل جوړولوپاره

له سره ټولو خامو موادو راوړو ته به اړ وو ،په دې سره به هغوی ته دوه تاونونه رسیدل یو به یې وخت وربانديې ډیر تیر شو بـل به یې وربانديې مصرف څلور چند ډیر شو

نن دهغو عربانو لمسیان او کړوسیان دچا پلرونـو او نیکونـو چې دلارنس آف عربیه سره په یادو جنایتونو کې برخه اخیستې په ژاړه او فریاد دي، وایي د دوی نیکونو او پلرونـو ډیـر بـد کـړي چې دڅو پیسو په عوضو کې یې دومره سترخیانتونه دخپل هیـواد او خلکو سره کړي اردن پلازمینې ( عمان) څخه څلویښـت میلـه لري پرتې سیمې (الدوره) په استقامت عـثماني ترکـانو د عـربي صحرا دننه تر ۶۰۰ میله پورې دریل ګاډي پټلۍ غځولې وه خـو دلارنس آف عربیـه پـه لمسـون دهغـه عـربي پیروانـو هغـه ټولـه ونړوله؛؛ دکومې وران ویجاړ پاتي شوني چې اوس هم دعربو په صحرا کې یو خوا بل خواته شـیندل شـوي پراتـه ښـکاري، شـیخ العطون دا لدوره سیمې یوقبایلي مشر او سردار دی وایي : الدوره یـوه بیرتـه پـاتي او غربـت ځپلـې سـیمه ده کـه د دوی پلرونـو دعثمانیانو سره خیانت نه وای کړی نن بـه د دوی دسـیمې حالـت بدل واودوی به په اقتصاد لحاظ دشمال او جنوب سره نښـتي وو هغه دا راز هم پټ نکړ چې نیکه یې دعثمانیانو دریل ګاډي پټلـۍ په الوزولو کې لاس درلود او فکر به یـې کـاوه چـې دا معمـولي تباهې ده خو نه پوهیـده چـې دابـه یـوه اوږده او نـه هیریـدونکې تبـاهې ګرځـي ددې ټولـو ترشـاه د مکـار لارنـس لاس و هغـه صحرائي عربان په ډیرلږ قیمت واخیسـتل او بیـا یـې د یـو مـنظم لښکر په توګه دترکانو خلاف وجنګول

برتانیا کې دلارنس په جاسوسۍ او دهغه په لاس ته را وړنو فلمونه جوړشوي او هغه یې دبرتانیې ترټولو کامیاب او هوښیار جاسوس په توګه نومولی همدا راز دهغه په ژونـد ګـڼ کتابونـه لیکل شوي،بې شمیره ډرامې او داستانونه وربانديې کښـل شـوي دهغه دخپلویادابښتونو کتاب په انګریزي علاوه پـه دولـس نـورو ژبـو کـې هـم چـاپ شـوی دی او دنیـږدې یـوې پیـړۍ تیریـدو وروسته هم چاپ اوبازارلري .

شیخ العطـون دانګلسـتان دبرسـټيل پوهنتـون د کارپوهـانو دیوټیم سره ددې لپاره همکاري کوي چې په جزیرة العرب کې څو هغوی دستر عربي انقلاب دپلانولو په اړه دلوموړي نړیـوال جنـګ وروسته یوه لویه سروې تـرسره کـړي او پـه خاصـه توګـه د یـاد انقلاب په منظمولو کې دلارنس اف عربیه کـردار و څیـړي چـې هغه په څومره مهارت ، دقت او پوهه دعربو پـه زړونـو او مغـزو کې دملت پالنې مفکوره پیچکاري کړه او بیا یې هغه څنګه پـه دومره جوش او غورځنګ راوسته چـې لـه املـه یـې ټـول جزیـرة العرب د عثمانیانو دواک څخه ووت ؟

نو دتاریخ ددغه باب په مطالعه کې ډیر دپند او عـبرت نـه ډک مواد مندل کیږي کاشکې دموجوده اسلامي نړۍ واکمـن او عام وګړي دخپل مغلوب حالت دبـدلولو پخـاطر لـه دغـو مـوادو پخپلو پلانو او ستراتیژیو کې اوددښمن دعزایمو شنډولو په برخه کې کار واخلي او په سړو مغزو کینې او فکر وکړي چـې د دوی دښمن څومره مکار، عیار، چلاک، فریب کار او بیـدار دی او پـه مقابل کې یې دوی څومره ساده ګان، غافله اوناپو هه دي... نن ورځ موږ ته په دې داستان کې دعبرت او پنـد سـبق پـروت دی ، بیشکه امریکا په پوځي ډګر کې دتـاریخي شکسـت سره مـخ ده ټول هغه افغانان چې دهیواد په ازادۍ او سوکالۍ مـین دي بایـد امریکا ته دا موقع ورنکړي چې هغه دکومې بلـې لارې پـه غـوره کولو سره خپل روان شکست په بـري بانـدې بـدل کـړي او هغـه دخپلو جاسوسي شبکو لـه لارې دنـورو دسیسـو او توطیئـو پـه رامنځته کولو دمیړني افغان ولس تاریخي میړانه او قهرماني پـه سیند لاهو هغه غلامان او اجیران چې دامریکا لپاره دڅو ډالرو په بدل کې خپل ولس او هیواد وال وژني هغـوی دي هـم تـري پنـد واخلي چې سبا تـه بـه د دوی اولادونـه او نسـلونه هـم دوی ددې پلوه ملامت اوپړه بولي چـې دوی دخپـل هیـواد دګټـو پـه مقابـل دامریکـا دګټـو لپـاره کـار او غلامـي کولـه پـه دوی بـه خپـل راتلـونکي نسـلونه لعنتونـه وایـي او پـه یـادولو بـه یـې شرم او خجالت محسوسوي ...



# په اسلام کې ددنیوي علومو ارزښت

م عماد

زه په اسلام کې د علم په اوچت مقام نه غږېږم – ځکه چې په شرعي نصوصو کې چې کوم ځای د علم فضیلت په مطلقه توګه یاد شوی، جماهر علماء وايي چې د هغه نه مراد شرعي علم دی خو پدې شرط چې نیت د الله تعالی رضا وي؛ نو ځکه مخامخ موضوع ته راځم او په څوټکو کې رڼا پرې اچوم:

لومړی: مادي(دنیوي) علوم د ډېرو شرعي احکامو د پرځای کولو وسیله ده، د بېلګې په توګه:

(1) د اسلام او مسلمانانو د دښمنانو مقابله او د دغې مقابلې لپاره تیاری کول او وسایل برابرول پر مسلمانانو فرض دي.

الله ﷻ فرمایلي دي: وَأَعِدُّوا لَهُمْ مَا اسْتَطَعْتُمْ مِنْ قُوَّةٍ وَمِنْ رِباطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللّٰهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِنْ دُونِهِمْ لا تَعْلَمُونَهُمُ اللّٰهُ يَعْلَمُهُمْ.

په دې آیت شریف کې مسلمانانو ته د جګړې په وسایلو او اسبابو د ځانونو چمتو کولو باندې امر شوی دی.

او بل ځای ورته امر کوی چې: يا أَيُّها الَّذِينَ آمَنُوا خُذُوا حِذْرَكُمْ.

دلته هم په پام او حذر کولو امر شوی دی او د اصولو علماء وايي چې مطلق امر وجوب افاده کوي.

(2) علماء وايي چې د شریعت اصلي موخه د هغو پنځو شیانو ساتل دي، چې انسان ورته دیني او دنیوي ضرورت لري، هغه عبارت دي له: دین، نفس، مال، عقل او نسل څخه. دغه پنځه ضروریات ساتل لکه څرنګه چې بنایي هغسې نن سبا پرته له مادي او دنیوي علومو ستونزمن دي، یا په بل عبارت یوازې د همدې علومو په ترلاسه کولو ممکن دي.

(3) اسلام له مسلمانانو غواړي چې همېشه برلاسي او د نورو په مقابل کی عزتمن واوسئ. د هغوی په وړاندې د ټیټوالی احساس ونه کړي، دا لا څه چې عملا تر نورو ټیټ او هغوی ته محتاج وي، الله ﷻ فرمایلي دي: وَلَا تَهِنُوا وَلَا تَحْزَنُوا وَأَنْتُمُ الْأَعْلَوْنَ إِنْ كُنْتُمْ مُؤْمِنِينَ، — وَلَنْ يَجْعَلَ اللّٰهُ لِلْكافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلاً، --- وَلِلّٰهِ الْعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِ وَلِلْمُؤْمِنِينَ.

او ښکاره خبره ده چې دا کار هله ممکن دی، چې مسلمانان په مادي علومو کې که تر نورو وړاندې او کم نه وي، که یې سیالان نه وي نو سپک به وي، چې سپکوالي یې دنیوي او اخروي خطرناکې پایلې لري، لکه دا نن چې مسلمانان ورسره عملا لاس په ګریوان دي.

(4) په قرآن مجید کې ځای ځای په کائناتو کې د الله تعالی د شتون او د هغه د صفاتو(علم، قدرت، حکمت . . . ) د نښو نښانو یادونه کړې او انسانانو ته یې سپارښتنه کړې، چې په هغې کې فکروکړي. دا فکر کول په معاصر وخت کې یوازې په ساینس ښه کېدلای شي، هر څومره چې یو مسلمان عالم د کائناتو په اسرارو خبر وي هماغومره د قرآن مجید د اعجاز په رابرسېره کولو او د رسول الله – صلی الله علیه وسلم – د حقانیت د اثبات لپاره روڼ استدلال کولای شي.

(5) قرآن مجید د روزی پیدا کولو، او دنیوي ژوند په برابرولو امر کړی دی: وَابْتَغِ فِيمَا آتَاكَ اللّٰهُ الدَّارَ الآخِرَةَ وَلَا تَنْسَ نَصِيبَكَ مِنَ الدُّنْيَا، ---- فَإِذا قُضِيَتِ الصَّلاةُ فَانْتَشِرُوا فِي الْأَرْضِ وَابْتَغُوا مِنْ فَضْلِ اللّٰهِ، ---- رَبَّنا آتِنا فِي الدُّنْيا حَسَنَةً وَفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنا عَذابَ النَّارِ. او دا کار لکه څرنګه چه بنایي هغسې یوازې په علمي پرمختګ ممکن دي.

کله چه دا جوته شوه، چې دنیوي علم(ساینس) د دغسې مهمو شرعي احکامو او واجباتو د پرځای کولو وسیله ده او پرته له هغه ناشوني دي، نو له همدې کبله ډېرو علماوو د دنیوي علومو زده کړه فرض کفایي بللې ده؛ ځکه چې یوه اصولی فقهي ګډه قاعده وايي چې: ما لا يتم الواجب الا به فهو واجب، هغه څه چه واجب پرته له هغه نه پرځای کیږی هغه هم واجب دی. په عین وخت کی له دغه علومو څخه مخ اړول د امت د ضعف او ضرر مهم لامل دی. د یادې قاعدې خور بله قاعده وايي چې: ما ادی الی الحرام فهو حرام، یعنی مخنیوی یې پکار دی، چې دې ته په شریعت کې (سد الذرائع) وايي، چې دغه دواړه قاعدې بیا د بلې پراخې مقاصدې قاعدې تر چتر لاندې راځي چې هغه هم د

علماوو سره منل شوې قاعده ده: للوسائل احکام المقاصد، یعنې مباح وسیلې د مقاصدو حکم لري، همدا راز یوه بله فقهي متفق علیها قاعده وايي چې (الضرر یزال) ضرر به لرې کېږي، او شک نشته چې د مسلمانانو اوسنۍ حالت تر هر پخواني وخت ډېر تاواني حالت دی او باید لیرې او بدل کړای شي.

دوهم: د پورته یادو شویو قواعدو پر بنسټ دنیوي علوم فرض کفايي گڼلی شو لکه وراندې چې یې یادونه وشوه، زه به دلته د څو پخوانیو او اوسنیو نامتو علماوو خبرې لنډې لنډې وړاندې کړم:

① امام غزالي په خپل احیاء علوم الدین نامتو کتاب کې وايي: فرض کفايي علم هغه علم ته وايي چې د ژوند په چارو کې ترې رغېدل نه کیږي لکه طب چې د بدن د پایښت لپاره اړین دی، او لکه حساب چې د معاملاتو، میراث، وصیت او نورو شیانو د ویشلو لپاره اړین دی، همدا راز د صنعتونو اصول هم فرض کفايي دي لکه بزگري او رخت اوبدل، خیاطي او داسې نور.

② همدا راز امام نووي په خپل روضة الطالبین نومې کتاب کې وايي: ځینې عقلي علوم چې ورته اړتیا ده فرض کفايي دي لکه طب او حساب.

③ امام عزالدین ابن عبد السلام وايي په خپل قواعد الأحکام فی مصالح الانام کتاب کې وايي: طب لکه د شریعت په شان د روغتیا او د بدن د سلامتیا، د رنځوریو د علاج او چفع کولو لپاره وضع شوی دی دواړه یعنی شریعت او طب د گټو د راسته راوړلو او مفاسدو د له مینځه وړولو دنده لري.

④ امام ابن القیم په خپل الطرق الحکمیة کتاب کې وايي: هغه صناعات چې ټولنه ورته اړتیا لري، لکه بزگري، رخت اوبدل، ودانۍ جوړول او داسې نور شیانو باندې خلک مکلف کړئ، ځکه چه د خلکو گټې بې له هغو نه شي خوندي کېدلای، نو له همدې امله ځینې شافعي او حنبلي فقهاوو ویلي دي چې ددغو کارونو زده کول فرض کفايي دي.

⑤ همد اراز شیخ محمد رشید رضا په خپل المنار نومې تفسیر کې ځای ځای پدې خبره ټینگار کړی دی، مثلا: هغه یو ځای وايي:

(... نو ځکه علماء وايي چه ټول هغه صناعات او فنون چه انسانان ورته په ژوند کی اړتیا لري د دینی فرائضو څخه دي، که ټول امت د هغې کوم یو پرېږدي بې له ناتوانه کسانو نور ټول گنهگار او د الله ددین مخالف گڼل کیږي، په همدې فکر او همدې عقیده د اسلام د برم ځلی پیېری دنگ ولاړ وو) بل ځای پر مسلمانانو باندې ددښمن په وړاندې د تیاري په ترغ کې وايي: چې مسلمانان باید توپونه، جنگي الوتکي او کښتې... ولرئ، او دا هر څه په ساینس پورې تړلي دي نو ځکه دغه علوم په نننی عصر کې په مسلمانانو واجب دي.

⑥ شیخ ابن عثیمین وايي د ځینې دنیوي علومو زدکړه لکه انجنیري، طب او داسې نور هېڅ باک نه لري، بلکه که د چا نیت سم وو اجر هم ورکول کیږي، ځکه دا علوم د نورو شیانو لپاره پکار دي، نو له همدې کبله ځینې علماء وايي چې د طب زده کړه فرض کفايي ده.

دریم: د دنیوي علومو زده کول په اصل کې مباح کار دی، خو که د چا نیت دا وي چې مسلمانانو ته خدمت وکړي بیا په طاعاتو کې شمیرل کیږي، ځکه چې دا شرعي منل شوې قاعده ده چې مباح کار په ښه نیت په طاعت او د ثواب په کار بدلیږي، حتی که د خپلې میرمنې سره کور والي، او یا ورته په خوله کې گوله ورکول هم وي لکه په حدیثو کې چې راغلي دي.

څلورم: ددغو علوم د زدکړو شرائط برابرول او د هغو خپرول د اسلامي حکومت درنه او اساسي دنده ده.

پنځم: معلومه خبره چه د دنیوي علومو څخه مراد یوازې هغه علوم دي چې مسلمانانو ته یې روا گټه رسیږي، خو هغه علوم او فنون چې گټه یې ناروا ده په خپل اصلي حکم پاته دي.

شپږم: ددنیوي علومو تر څنگ هر مسلمان پدې مکلف دی چې د شرعي علومو هغه برخه زده کړي چې خپل ورځنی ژوند کې یې ورته اړتیا ده، ددیني او عصري علومو یو ځای زده کړه یوازې زمونږ او ستاسې په هېوادونو کې دود نه دی خو په ځینی هیوادونو کې بیا اکثره خلک دواړه ډولو ته لاس رسی لری، لکه مصر چې اکثره شېخان یې اوچت عصري زده کړې لري.

اووم: دادی څوک نه وايي چې که داسې وای نو پخواني علماوو ولې په دې علومو دومره ټینگار نه دی کړی، ځکه چې هغه وخت چا ته ددغو علومو ارزښت نه وو معلوم، او نه یې له گټې او اهمیت دومره څرگند وو لکه نن چې څومره دی، فقهي مهمه قاعده وايي: لا ینکر تغیر الاحکام بتغیر الازمان، یعني د هغه اجتهادي فقهي احکامو چې د مفاسدو او مصالحو په پرتله، او یا په عرف او عادت ولاړ وي د وخت په تیرېدو سره بدلېدل د نیوکې وړ کار نه دی.

اتم: په پای کې د یو ټکي یادونه راته مهمه ښکاري، او هغه دا چه ځینې خلک په ملایانو او علماوو نیوکه کوي چې هغوی دنیوي علومو ته چندان ارزښت نه ورکوي او یا بد ورته وايي، سره ددې چې دهغوی دغه کار په اصل کې صحیح نه دی، خو هغوی دومره ډېر ملامت هم نه دي ځکه چه زمونږ په ټولنه کې به چې ډېرو ځلمکیو په مکتب کې یو څو ټکي زده کړل نو ځان به ورته له بده مرغه دوهم انشتاین ښکارېده او په ملایانو او دیني علومو ملنډې وهل به ورته د ترقی او پرمختگ نښه ښکارېده.

لنډه دا چه: که د مسلمانانو سره رښتیا هم د هغسې باعزته ژوند غم وی لکه څرنگه چې ددې امت سره ښایي نو باید چې په شرعي معیارونو منضبط دنیوي علم لاس ته راوړلو هوډ وکړئ!

والله المستعان، وعلیه التُکّلان

# د شهید حاجي هیواد
# (ملا جیلاني آخند)
## ژوند او کارنامو ته کتنه

قاري سعید

هغه زلمی چې د فیروزکوه په دېرینه لمن کې د غرني غاټول په شان راوټوکېد، د هلمند په دښتو کې ستر شو، د حق کلیمې د لوړتیا لپاره د جهاد او مبارزې په یون کې د هندوکش تر غېږې لاړ، په افغانستان د امریکایي یرغل نه وروسته یې د هلمند د واشیر له غرونو د پاڅون بیرغ پورته کړ، پوره شپاړس کاله د طاغوت له دجالي لښکرو سره وجنګېد او په پای کې د معرکې په ډګر هغه وخت د دښمن لاس ته ولوېد چې ټپي بدن یې بې سده او له غورځنګه لویدلی و. دغه اتل زلمی چې شهید جسد یې د دښمن له زندانه راووت ملا جیلاني آخند نومېده، چې د هلمند په جهادي معرکو کې یې د (حاجي هیواد، حاجي جانان او حاجي غمي) په نومونو غږ کاوه. دلته غواړو د دغه اتل مجاهد د ژوند پانه راواړوو او یوه شیبه یې خاطرې را تاندې کړو.

### شهید ملا جیلاني آخند

شهید حاجي هیواد چې اصلي نوم یې ملا جیلاني دی د ملا غلام فاروق زوی، په قوم تایمنی چې په ۱۳۵۵ لمریز کال کې یې د غور ولایت د تیورې ولسوالۍ د جوی سوراخ په کلي کې په یوه دینداره کورنۍ کې دنیا ته سترګې پرانیستې وې.

د دوی کورنۍ د ملایانو کورنۍ وه، پلار او ترونه یې ملایان او مدرسین وو، نو ځکه یې له کوچنیوالي دیني علومو ته مخه کړه او ابتدائي دینې زده کړې یې له خپل پلار او ترونو څخه پیل کړې. د روس ضد جهاد په اواخرو کې د دوی کورنۍ له غور ولایت څخه د هلمند ولایت نادعلي ولسوالي ته راغله. ملا جیلاني نوی ځوان و چې د دیني علم په حصول پسې یې د سفر موزې پښو کړې او د پاکستان د بلوچستان ایالت کوټې ښار ته لاړ.

### دیني زده کړې او د جهادي ژوند پیل

هغه وخت چې په پاکستان کې تر پنځه میلیونه زیات افغان مهاجرین اوسیدل، د پاکستان په بلوچستان او خیبر پښتونخوا ایالتونو کې ګڼ شمیر د مهاجرینو کمپونو او د افغانانو په سلګونو دیني مدارس هم فعال وو. ملا جیلاني اخند په همدې مدارسو کې دیني زده کړې پیل کړې او ډېره موده د کوټې په ښار کې د مولوي

محمد ابراهیم صاحب په نوم د یوه مشهور دیني عالم په مسجد او مدرسه کې واوسید. په همدې کلونو کې په افغانستان کې د کورنۍ جګړې د پای ته رسولو او عام شوي فساد د محو کولو په تکل د طالبانو اسلامي تحریک له کندهاره پیل شو. څو میاشتې وروسته چې طالبانو د افغانستان جنوبي او جنوب ختیځ ولایات نیولي و او د هرات پر لور د پرمختګ په حال کې و، ملا جیلاني هم درسونه پرېښودل او د یوه مجاهد په صفت د طالبانو له اسلامي حرکت سره وصل شو.

## د اسلامي امارت په لیکو کې جهادي خدمت

ملا جیلاني آخند د اسلامي تحریک په لیکو کې جهادي خدمت د هرات له جهادي کرښو څخه پیل کړ،چې د مولوي عبدالقدیر صاحب تر مشرۍ لاندې یې جهادي فعالیت کاوه، د نیمروز له فتحې وروسته څه موده په نیمروز ولایت کې و او هلته یې د شهید ملا نور الحق آخند تر مشرۍ لاندې نظامي او بیا د معارف په برخه کې ملکي کارونه ترسره کول.

وروسته نوموړي د هلمند ولایت په جهادي مدرسه کې درسونه پیل کړل او هر وخت به چې د هلمند له جهادي مدرسې څخه جهادي کرښو ته تشکیل کیده ملا جیلاني آخند به یې برخوال و. په دې لړ کې نوموړی د هغه کاروان ملګری و چې د سالنګ له تونل ووت، بغلان یې ونیو او بیا په کندز کې محاصره شو. د دې محاصرې په مهال ملا جیلاني په لومړي ځل ټپي شو او اوه میاشتې په کندز کې پاته شو.د شمال د سترو فتوحاتو په کاروان کې چې د فاریاب له ولایت پیل شول او بیا جوزجان، سرپل، مزار شریف، سمنګان او د بغلان دوشي او کیان دره فتحه شول، ملا جیلاني د هلمند جهادي مدرسې د تشکیل د مشر مولوي حبیب الله صاحب تر مشرۍ لاندې د دې جهادي کاروان برخوال. وروسته نوموړي په کندز کې هم ډېره موده جهادي خدمت وکړ او د تخار په دوهمه فتحه کې یې هم ګډون درلود.

د اسلامي امارت د واکمنۍ په اواخرو کې نوموړي په هرات ولایت کې خدمت پیل کړ، هلته د جهادي ملګرو مشري وروسپارل شوه او بیا به له هرات څخه بیلابیلو جنګي کرښو ته ورته، چې ډېر ځله به یې غور او نورو نږدې ولایاتو کې د مخالفینو د بغاوتونو د ځپلو لپاره تشکیلونه کول.

د امریکایي یرغل د پیل په مهال چې کله د هیواد په بیلابیلو سیمو کې مخالفین او د امریکا ګوډاګیان راپورته شول، له دې جملې د هرات ولایت په ختیځو ولسوالیو لکه د پښتون زرغون، کرخ او اوبې ولسوالیو کې د تورن اسمعیل او غازي محمد په مشرۍ جګړه مارانو حملې پیل کړې، ملا جیلاني آخند د دغو حملو د مخنیوي لپاره له خپلو ملګرو سره یادو ولسوالیو ته لاړ، د طاقچې، تاغون کوه او ګروه په سیمو کې یې بیا د امریکا ګوډاګیان په شاوتمبول،په همدې وخت کې د کرخ ولسوالۍ مسؤلیت وروسپارل شو. خو دی په کرخ کې و چې دمزار شریف او شمالي ولایاتو له سقوط وروسته د هرات ښار په منځ کې جګړه پیل شوه، ملا جیلاني اخند له خپلو ملګرو سره هرات ته راغی، خو دا چې په هرات کې جګړې زور واخیست او امریکایي الوتکو هم سخت بمبار کاوه طالبانو له هرات ښاره د شینډنډ ولسوالۍ خواته عقب نشیني وکړه. یوه ورځ بعد دوی هلمند او په دوهم ورځ کندهار ته راغلل او بیا یې په کندهار کې شل ورځې د امریکایي اشغالګرو او د هغوی د ګوډاګیانو په خلاف په میړانه مقاومت وکړ.

په کندهار کې د وروستي مقاومت په مهال د جګړې قومنده خپل د امیر المؤمنین ملا محمد عمر مجاهد په غاړه وه، هرې خواته به چې ضرورت و مجاهدین یې لیږل، د شهید ملا جیلاني ملګری حاجي بشیر وایي، په دې وخت کې موږ پنجوایي او د ښار شاوخوا نورو سیمو ته بیا بیا لاړو تر څو که امریکایان عسکر پیاده کړي نو حمله به پرې وکړو. وروسته د ملاصاحب په امر د معروف او ارغسان خواته ولیږل شوو. د ارغسان لخوا ګل اغا شیرزی د امریکایانو په ملتیا را روان وو. موږ یې مخه ونیوله او څو ځله مو په جګړو کې تېښتې ته مجبور کړ، خو وروسته ګل اغا د معروف له ولسوالۍ لار چپه کړه اود تخته پل طرف ته لاړ. ملا جیلاني اخند او ملګري یې تر هغې ورځې په معروف کې و چې

طالبان د کندهار له ښاره ووتل. له هغه وروسته ملا جیلاني اخند د هلمند په نادعلي کې خپل کور ته ستون شو.

## د امریکایي اشغال پر ضد جهاد

د امریکایي اشغال په لومړي کال ملا جیلاني آخند څه موده د هلمند دمرکز لښکرګاه په بولان سیمه کې د مسجد امامت وکړ، وروسته موسی کلا ولسوالۍ ته لاړ او هلته یې د مشدیانو په سیمه کې د شیخ مولوي محمد لعل صاحب په مدرسه کې دیني درسونه وویل. په دوهم کال نوموړي په نادعلي کې خپل پخواني ملګري طالبان سره راټول کړل او پر دې یې مشوره ورسره وکړه چې څه کوو او د امریکایانو په خلاف جهاد څرنګه پیلوو؟

د نوموړي ملګری حاجي بشیر وایي په دې مجلس کې مو په جهاد توافق راغی، بیا زه او ملا جیلاني لاړو یو موټرسایکل مو رانیو او د واشیر ولسوالۍ په خوا لاړو، د واشیر غرونو ته په دې اراده ورغلو چې د خپل جهادي مرکز او پناه ګاه لپاره په کې ځای پیدا کړو. د واشیر غرونه مو خوښ شول، یو ځای مو د مرکز فعالولو لپاره غوره کړ، بیا مو په همدې غرونو کې مالداران او محلي اوسیدونکي ولیدل، هغوی هم د امریکایي کفري اشغال ضد احساسات درلودل او موږ ته یې د همکارۍ ډاډ راکړ.

له دې وروسته مو همدلته په غرونو کې د لویو ډبرو تر منځ سایه جوړه کړه، همدا مو لومړنی مرکز شو. بیا مو لوښي، خوراک شیان لکه اوړه، غوړي، چای، پلمټ وغیره په چنده پیدا کړل، څو ملګري مو نور هم راسره کړل او دغه غرنی جهادي مرکز مو فعال کړ.

د امریکایي یرغل په دریم کال چې د لومړنیو انتخاباتو لپاره تیارۍ روانې وې،تر دې وخته زموږ د ملګرو شمیر تر لسو تنو زیات شوی و، خو تر اوسه مو کوم جهادي عملیات نه وو کړي، یوه ورځ په دوو موټرو کې چیرته روان وو چې د هرات په سرک مو د حکومتي موټرو یو کاروان ولید چې ۱۲ موټر و. همدا کاروان مو تعقیب کړ او مخې ته ورسره تېر شو د دلارام په ساحه کې مو ورته کمین ونیو. دا چې له کاروان سره امنیتي کسان ډیر نه و، نو په برید کې د کاروان ټول موټر تخریب او ګڼ شمیر برخوال یې له منځه لاړل.

له دې حملې څه موده وروسته مو یوه شپه د هلمند ولایت د واشیر ولسوالۍ په مرکز برید وکړ، ولسوالي مو ونیوله او دښمن ته درونډ زیان ورسید. امریکایانو او داخلي ګوډاګیانو په موږ پسې عملیات را وایستل غرونو ته راغلل خو موږ په غرونو کې ځای بدل او ملګري متواري شول. د ملا جیلاني اخند( حاجي هیواد) تر مشرۍ لاندې د مجاهدینو دې ټولې په هماغو لومړیو کلونو کې د واشیر او دلارام په مربوطاتو کې بیا بیا جهادي بریدونه ترسره کړل، د شوراب په ساحه کې یې د دښمن څو پوستې فتحه او غنائم یې ترلاسه کړل. د واشیر په غرونو کې خفیه مرکز چې تر څلورو پورې فعال وو، هغه وخت مجاهدینو پرېښود چې په هوارو سیمو او کلیو کې د مجاهدینو حضور علني شو او دښمن له اطرافي علاقو وتښتید.

## یو عجیب تصادف

کله چې د امریکا خلاف جهاد له پیله څو کاله تیر شول، نو دا مهال د شهید حاجي هیواد په غرني مرکز کې د مجاهدینو شمیر هم زیات شوی او لسګونو ته رسیدلی و. حاجي بشیر کیسه کوي چې یوه ورځ طیارې ډیرې ګرځیدې خو هدف یې معلوم نه و، په همدې ورځ ناڅاپه حاجي هیواد وویل چې درځئ د واشیر ولسوالۍ په مرکز حمله وکړو. زموږ له ځایه د واشیر تر مرکزه ۱۲ ساعته پیاده لار وه، خو ملګري روان شول او تر ماښامه یې د ولسوالۍ مرکز ته ځانونه نږدې کړل. ماښام مو په ولسوالۍ حمله وکړه، ګڼ شمیر ګوډاګي عسکر د ولسوال په شمول له منځه لاړل، ولسوالي فتحه شوه او مجاهدینو ته ډیر غنائم په لاس ورغلل. په سبا خبر شوو چې امریکایانو زموږ په مرکز خورا ستره چاپه وهلې، درونډ بمبار یې ورباندې کړی او بیا یې ګڼ شمیر ځانګړي ځواکونه پیاده کړي تر څو مرکز محاصره او مجاهدین له منځه یوسي. خو دا چې زموږ ملګري له مرکزه وتلي وو او یوازې دوه تنه مجاهدین مو د پیره دارۍ لپاره پرې ایښي وو، هغو دوو تنو هم په غره کې ځان مخفي کړی

و، نو ځکه د امریکایانو دغه لوی عملیات او بمبار مکمل ناکام او موږ ته یې هیڅ زیان ونه رساوه، بل اړخ ته موږ په همدې شپه په ولسوالۍ کامیاب عملیات ترسره کړل. امریکایان څو شپې همدلته په غرونو کې ول، موږ ته به مالدارانو او شپنو حال راکاوه، کله چې امریکایان لاړل موږ بیرته خپل مرکز فعال کړ.

## د هلمند د ټولو سیمو مجاهد

هلمند د افغانستان تر ټولو ستر ولایت دی، چې د دې هیواد لسمه برخه اراضي تشکیلوي، دغه ولایت په جهادي لحاظ هم تر ټولو مشهوره او حماسه سازه سیمه ګڼل کیږي. د دې ولایت هره ولسوالي د یوه کوچني ولایت هومره پراختیا لري نو ځکه یې د جهادي معرکو ډګرونه هم خورا پراخ او ګڼ دي. شهید حاجي هیواد د دې ولایت له هغو ډلګۍ مشرانو څخه و چې د هلمند ولایت په ساره او اوږده کې یې په هره ولسوالۍ او مشهوره جهادي سیمه کې په جهادي مبارزه کې ګډون کړی،په ډیرو ولسوالیو کې یې د رسمي جهادي مسؤل په حیث وظائف اجراء کړي او په ځینو سیمو کې یې دلویه تهاجمي عملیاتو لپاره تشکیلات ورکړي او یا یې د مجاهدینو مرستې ته دانګلي دي. دلته غواړو په ډیر اختصار د نوموړي جهادي سفر او د تاریخ جوړونکې مبارزې مسیر ته اشاره وکړو.

د امریکا ضد جهاد د لومړنیو تشکیلاتو په مهال چې کله شهید ملا اختر محمد عثماني صاحب د هلمند والي وټاکل شو، حاجي هیواد یې د واشیر نظامي مسؤل مقرر کړ،څه موده وروسته د نوزاد مسؤل شو، چې په همدې وخت کې د نوزاد له مرکز پرته ډیری اطرافي سیمې د مجاهدینو په واک کې راغلې، وروسته د هلمند مرکزي سیمې، باباجي ته تبدیل شو او بیا ناوې ولسوالۍ ته لاړ، د ناوې پر ولسوالۍ د فاتحانه عملیاتو مشري یې په غاړه درلوده، خو د ولسوالۍ له فتحې وروسته په ګڼ شمیر امریکایي ځواکونو په ناوه یرغل وکړ، حاجي هیواد له ډیرو نورو مجاهدینو سره محاصره او بیا یې د ریګ خواته ځانونه وایستل. له دې وروسته له خپلو جهادي ملګرو سره د میرمندو سیمې او بیا په هزار جفت ولسوالۍ د برید لپاره له نورو مجاهدینو سره د هلمند جنوب ته لاړ، د هزار جفت ولسوالي فتحه او شل شپې د مجاهدینو په لاس کې وه، هلته هم امریکایانو سخت هجوم راوړ، مجاهدین محاصره شول او سخت بمبارونه پیل شول.

په ۲۰۰۶ میلادي کال کې د ګرشک ولسوالۍ مسؤلیت وروسپارل شو، دغه وخت د هلمند دغه مهمه مرکزي ولسوالي د سختو جګړه شاهده وه، ګرشک ته د تګ په لومړۍ شپه په یوه جګړه کې د نوموړي ۱۲ تنه جهادي ملګري شهیدان شول. شهید حاجي هیواد دوه کاله د ګرشک جهادي مسؤلیت وکړ وروسته یې په باباجي، کجکي او باغران ولسوالیو کې مسؤلیتونه وکړل او په ۲۰۱۰ میلادي کال د اسلامي امارت د مشرتابه لخوا د هرات ولایت د والي یا جهادي مسؤل په حیث وټاکل شو.

ملاجیلاني آخند د ۲۰۱۲ میلادي کال تر نیمایي پورې د هرات ولایت نظامي مسؤل و، په دې کلونو کې په هرات ولایت کې جهاد ټولو ولسوالیو ته خپور شو،وروسته نوموړی هلمند ته راغی او د مارجې ولسوالۍ د نظامي مسؤلیت وروسته د هلمند د والي مرستیال وټاکل شو. په دې کلونو کې مجاهدینو د هلمند په بیلابیلو سیمو کې د امریکایي قرارګاوو او د اربکیانو او نورو داخلي عسکرو د پوستو د له منځه وړلو پراخ عملیات پیل کړل، حاجي هیواد د موسی کلا، ځاروان کلا او ګرشک د مربوطاتو په هغو عملیاتو کې د نورو مجاهدینو ترڅنګ برخه درلوده چې په پایله کې یې دغه ټولې سیمې له دښمن څخه تصفیه او یو ځل بیا آزادې شوې.

کله چې د فتحو دغه بهیر د نادعلي ولسوالۍ ته ورسید، دغه مهال حاجي هیواد د نادعلي د جهادي مسؤل په حیث وټاکل شو. نادعلي ولسوالي چې دښمن په کې خورا ځواکمن حضور درلود، په لومړي ځل ۱۵۰ تنه مجاهدین د دښمن د پوستو تر منځ د یوې نرۍ لارې نه په استفاده د دښمن منځ ته ورننوتل چې د پنځوس تنو مشري یې د حاجي هیوادپه غاړه وه. دښمن په دوی سخت هجوم راووړ، له هرې خوا بریدونه پیل شول او حتی د دښمن کماندویي

ولا تحسبن الذين قتلوا في سبيل الله امواتا بل احياء عند ربهم يرزقون

ځواکونه جګړې ته راورسیدل خو دا د حاجي هیواد په شان د باعزمه مجاهدینو استقامت و، چې په میړانه یې د دښمن مقابله وکړه او وروسته ټوله ولسوالي چې لسګونه قرارګاوې او پوستې پکې وې فتحه شوه.

دنادعلي له ویاړمنې فتحې وروسته نوموړی د باباجي د سیمې نظامي مسؤل شو، په دې سیمه کې د بشران لوی جنګ چې د دښمن سلګونه ځواکونه په کې ختم او ۹۷ تنه یې اسیران شول دغه راز د لښکرګاه لپاره دفاعي کرښه یې له منځه لاړه هم حاجي هیواد په کې د نورو مجاهدینو تر څنګ کلیدي کردار درلود.

## د هلمند نظامي قطعاتو د مرستیال په توګه

په وروستیو کلونو کې چې د اسلامي امارت د نظامي کمیسیون لخوا په ټولو ولایاتو کې ځانګړي قطعات جوړ شول، له دې جملې په هلمند کې د زرګونو په شمیر آزموده او مجهز مجاهدین په نظامي قطعاتو کې منسجم شول. دغو قطعاتو په جهادي ډګر کې خورا کلیدي نقش اداء کړ، د جنګ په ډګر کې یې دښمن سرکوب او د فتحو لړۍ یې تونده کړه. د شهید حاجي هیواد د جهادي ژوند وروستۍ وظیفه د هلمند جهادي قطعې مرستیالي وه. نوموړي د ژوند وروستي وختونه د هلمند په جنوبي ولسوالیو لکه ناوه، مارجه او ګرمسیر کې په جهادي عملیاتو تېر کړل چې پراخې بریاوې یې درلودې، په دې موده کې د ناوې ولسوالۍ چې اشغالګر او ګوډاګیان په کې د هلمند د بلې هرې سیمې په نسبت ډیر نفوذ لري فتحه شوه. وروسته جنګي کرښه د د ناوې د مرکز او لښکرګاه ترمنځ د عینک په سیمه جوړه شوه. حاجي هیواد ډیر وخت په همدې جهادي کرښه کې اوسیده، ډیرې شپې یې په مورچو او سنګرونو کې تیرولې او مجاهدین یې رهبري کول. دښمن څو ځله په دې جهادي کرښه خورا پراخ هجوم راووړ، خو حاجي هیواد د الله تعالی په نصرت او د سرښندونکو مجاهدینو د قربانۍ په برکت هر ځل په میړانه دفاع وکړه.

له شهادت څه موده وړاندې نوموړی په هزار جفت ولسوالۍ کې په عملیاتو بوخت و چې دښمن د درانه بمبار په بدرګه په ناوه ولسوالۍ پراخ هجوم راوړ او د دې ولسوالۍ مرکز یې یو ځل بیا ونیو .

## د اسارت او شهادت واقعه یې

د شهید حاجي هیواد یو جهادي ملګری ملا سمیع الله اغا وایي: کله چې دښمن د ناوې ولسوالۍ مرکز ونیو، حاجي هیواد له هزار جفت ولسوالۍ څخه راغی او د ناوې د بیا نیولو پلان او عملیاتي طرح یې جوړه کړه. د نوموړي عادت دا وه چې د قومندې په وخت به زیاتره وخت یوازې و یا به هم یو بل ملګری ورسره او په موټر سایکل به ګرځیده. په دې ورځ یې مجاهدین په دوو خواوو تشکیل کړل، د یوې خوا مسؤل یې فرید جانان او د بلې خوا سیف الخالد وټاکل. دا د ۱۴۳۸ هـ ق کال د ذوالقعدې د میاشتې ۲۵ مه نیټه وه، په همدې شپه د عملیاتو پلان و، د عملیاتو مشر حاجي هیواد د جګړې سیمې ته نږدې د فقیرانو په نوم کلي کې د مجاهدینو یوه اطاق (میشت ځای) ته تللی و چې هلته د مخابرې لوړ انتن لګیدلی و چې ده غوښتل له دې ځایه د تعرض په وخت له ټولو مجاهدینو سره رابطه ونیسي.

په دې اطاق کې د ګوتو په شمیر څو مجاهدین وو، ماخستن نهه بجې شاوخوا امریکایي او داخلي ځواکونو د دریو چورلکو په مټ په همدې ځای چاپه ووهله. حاجي هیوا د دې لپاره چې مجاهدین وارخطا او بې روحیې نه شي، په داسې حال کې چې امریکایانو په ده چاپه وهلې وه، ده د مخابرې له لارې په مجاهدینو غږ وکړ چې څرخکې د جرنامو په سیمه کې د دښمن پوستو او قرارګاوو ته راغلي دي او ده ته کوم مشکل نشته.

خو امریکایانو او داخلیانو د ده په ځای ډزې پیل کړې وې، حاجي هیواد او څوتنو موجودو مجاهدینو ورسره مقابله شروع کړې وه،کماندویان یې ویشتلي وو، حاجي هیواد له خپل مرکز څخه بهر راوتلی و چې د یوې ویالې په غاړه ددښمن د څرخکو یوه درنه مرمۍ ورته نږدې لګیدلې او سخت ټپي شوی و. نوموړی له زخمي کیدلو سره بې هوښه لویدلی بیا امریکایانو ته په زخمي حالت کې په لاس ورغلی و.

امریکایان تر سبا ماختسن پورې په همدې سیمه کې موجود و، حاجي هیواد یې په کندهار کې د اشغالگرو د قاطع ماموریت په نوم قومندانۍ ته انتقال کړی و، چې د معلوماتو له مخې تر لسو ورځو پورې ژوندی او وروسته شهید شوی. د نوموړي جسد له نیول کیدلو پوره یوه میاشت وروسته د ده کورنۍ ته وسپارل شو او دغه د عزم او میړانې پیکر د ۱۴۳۸ هـق کال د ذولحجې د میاشتې په ۲۹ مه نیټه د هلمند ولایت د نادعلي ولسوالۍ د لوی مانده د سیمې د پلچک په هدیره کې خاورو ته وسپارل شو. د نوموړي له شهادت وروسته د مجاهدینو په غوښتنه او د اسلامي امارت په موافقه د نوموړي ورور حافظ رباني د نوموړي د ډلگۍ مشر وټاکل شو.

## د شهید حاجي هیواد د شخصیت په اړه

شهید حاجي هیواد د بل هر مخلص مجاهد په شان د سترو ښیگڼو او امتیازي صفاتو خاوند و. نږدې ملگري یې د زړورتیا، جرأت، اخلاص، خواخوږۍ او تقوی عجیب حکایات بیانوي چې دلته یې ځینې بیلگې درسره شریکوو:

ــ د نوموړي ملگری ملا بریالی وایي: غریبانه ژوند یې درلود او په ډیره کمه نفقه یې گزاره کوله. له بیت المال سره دومره محتاط و چې حتی د خپل شخصي عاجل ضرورت په وخت یې هم د بیت المال په پیسو کې تصرف نه کاوه. یو وخت یې چې په کور کې مریضان درلودل، په داسې حال کې چې د بیت المال تر لس میلیونه زیاتې پیسې ورسره وې خو ده د مریضانو علاج د شخصي- پیسو د موندلو تر وخته تأخیر کړی و.

ــ تهجد یې همیشنی عادت و او په ډیر خفیه شکل به یې تهجدکاوه. د سنگر یو ملگری یې کیسه کوي یو وخت چې د نادعلي ولسوالۍ په مربوطاتو کې په جگړه بوخت وو، د شپې د پیرې په مهال مې د غنمو په فصل کې د چا د ژړا غږ واورید چې ورغلم گورم چې د مجاهدینو مشر- حاجي هیواد دی، په دعا او عبادت بوخت دی. ویل به یې دا لوی او سخت کار (جهاد) د ورځې په خواستونو نه کامیابیږي باید د شپې خواستونه او دعاء زارۍ هم ورسره کړو.

ــ په یتیمانو او د شهیدانو په کورنۍ به یې همیشه پوښتنه کوله. خصوصا د اختر په ورځو کې تر خپله وسه به د شهیدانو د کورنیو مبارکۍ ته ورته او که له سیمې به لرې و د ټیلفون له لارې یې وربانـدې پوښتنه کوله. د مدارسو جوړول او د شهیدانو د اولادونو سالمه تربیه یې د ژوند یو بل مهم هدف و او په ډیر جدیت یې تعقیباوه.

الله تعالی دې یې شهادت، جهاد او ټول خدمتونه قبول کړي.

آمین یارب العلمین



# برق پایتخت

الهام

وقتی به جاده عمومی رسیدم هوا کاملا تاریک شده بود به دلیل خاموش بودن چراغ های کنار جاده نور چراغ های موترها خصوصاً نور چراغ های واسطه های زرهی چشم عابرین ومنتظرین کنار جاده را شدیداً آزار می داد.

در یکی ازموتر های کرولا بالا شدم،راننده رادیو را روشن نمود از روی تصادف در رادیو اخبار خارجی جریان داشت خبر در مورد خروج نیروهای آمریکایی از سوریه بود.

یکی از راکبین گفت :

که ترامپ در نتیجه سیاست خردمندانه پوتین از سوریه خارج می شود.

راننده در وسط حرف های راکب دوید وگفت:ولاگه آمریکا از سوریه براید این کار های ترامپ جنبه کمپاینی برای انتخابات آینده دارد.

برای یک لحظه فکر کردم که در شعبه خاورمیانه موسسه پژوهشی پیو نشسته ام.

بحث میان راکب و راننده با گذشت هر لحظه جدی تر می شد و نزدیک بود که بحث شان شکل مشاجره لفظی بیگرد.

در همین وقت من به راننده گفتم که پیش هوتل ....پیاده می شوم و به این صورت به جنجال شان نقطه پایان گذاشتم.

وقتی به خانه رسیدم دروازه خانه باز بود در کنج یک اتاق برادرم تنها نشسته بود برایش گفتم چرا گاز را روشن نکردی؟

بدون درنگ برایم گفت که گاز تمام شده است،اما برق به زودی می آید چون امشب نوبت ما است.

ساعت از هفت بجه به هشت بجه رسید اما برق نیامد به برادرم گفتم :

- بخیالم برق نخواهد آمد ازهمین رو برو و گاز بیاور.

برادرم گفت:

-حالا نا وقت شده و در کوچه دزد ها است امکان دارد که دبه گاز را ازپیشم بیگرد.

بلاخره برق ساعت ۹بجه شب آمد،ساکت تلویزیون به برق وصل بود وقتی تلویزیون روشن شد اشرف غنی در حال سخن رانی بود در صف اول محاسن سفیدان و در صفوف دوم وسوم جوانان نشسته بودند.

غنی به آرامی صحبت می کرد جوانان که در صف های دوم و سوم نشسته بودند بجای گوش دادن به حرف های رئیس جمهور کابل یا مصروف موبایل های شان بودند ویاهم با افراد بغل دستی های شان حرف می زدند .

اشرف غنی برای جلب توجه حضار مشتش را به میز خطابه کوبید و با صدای بلندگفت:

-اگر تمامی زمین ها وتپه های غصب شده را ازپیشت نگیرم ولاگه بانمت.

این حرکت وی خواب ریش سفیدان صف اول را پراند و جوان های صف های آخر موبایل های شان را از ترس درجیب ها ودست کول های شان گذاشتند.

غنی درحالی از پیگرد غاصبین حرف می زد که در صف اول چند غاصب مشهور نشسته بودند.

برای چند لحظه اشرف غنی باز به آرامی صحبت نمود اما یک بار دیگر صدایش را بلند نمود وگفت:

- در چهار سال گذشته برای چهار ولایت در حکومت وحدت ملی این قدر برق داده شده است که

در صد سال گذشته در هیچ حکومت داده نشده بود وقتی رئیس جمهورکابل این حرف را می زد برق ما در قلب پایتخت بعد از نیم ساعت باز رفت.

▫ لیکوال: م.عطاءالله مبارز

# له دیني یلوه د جهاد ارزښت او حکم!

دا یو منلی حقیقت دی، چې اسلام یو فطري او عالمي دین دی، په هره زمانه کې د انسانانو د ژوندانه د هرې برخې، مثلا: عباداتو، حکومتولی، له نورو ملتونو سره د اړیکو، اقتصاد او نورو برخو لپاره بشپړ او دعمل وړ حکمونه او لارښوونې لري.

د یو فطري دین په توګه د اسلام پیروي د هر عاقل او دانشور لپاره یو غوره انتخاب دی، سلیم عقل پخپله انسان ته د دې فطري دین د منلو بلنه ورکوي، همدا لامل دی، چې د اسلام له نظره په زوره د چا مسلمانول روا نه دي، الله تعالی فرمایي:

﴿لَا اِكْـرَاهَ فِي الـدِّيْنِ١ قَـدْ تَّبَـيَّنَ الرُّشْـدُ مِـنَ الْغَـيِّ١﴾ [البقرة:۲۵۶]

ژباړه: د دین په منلو کې هیڅ ډول زور زیاتی نشته، هدایت په ښکاره ډول له ګمراهۍ بیل کړی شوی دی.

دا یو داسې عام او قطعي نص دی، چې نه منسوخ شوی او نه یې تخصیص شوی. دا ځکه چې کله د اسلام حکمونه او لارښوونې بیخي ښکاره او په هره زمانه کې د عملي کیدو وړ دي؛ نو بیا زور-زیاتي ته څه اړتیا ده؟ همدا د نامتو مفسرینو امام رازي، ابن کثیر، طبري او جصاص -رحمهم الله تعالی- نظر هم دی.

خو کله چې د کافرانو لخوا د دې فطري او عالمي دین د دعوت مخه ونیول شي، او یایې په حریم او پیروانو یرغل او ظلم وشي، اسلام خپلو منونکو ته د داسې خنډونو د له منځه وړلو او له دیني ارزښتونو د دفاع لپاره د جهاد امر کوي، چې په توسط یې اسلامي ټولنه له کفري حاکمیت، کلتور او عنعناتو څخه وژغورل شي.

له ډېر پخوا راهیسې د اسلام دښمنانو د فکري او رواني جګړې له لارې، د اسلام لوړه څوکه (جهاد) تر برید لاندې نیولې، او هڅه کوي له دې لارې د اسلام د پرمختګ مخه ونیسي، هغوی د مستشرقینو او رسنیز پوښښ له لارې داسې ګنګوسې خپروي، چې ګویا د رسول الله صلی الله علیه وسلم او له هغه وروسته د خلفاوو په زمانه کې شوي جهادونه -نعوذبالله من ذلک- یوازې او یوازې د اقتصادي ګټو ترلاسه کولو او د خپلې امپراطورۍ د غځولو لپاره شوي دي.

خو حقیقت داسې نه دی، بلکې د اسلام په تاریخ کې شوي جهادونه یوازې او یوازې د دې فطري او عالمي دین د دعوت په لاره د پرتو خنډونو د له منځه وړلو او د بشریت د روښانه مستقبل لپاره شوي دي. په دې اړه د اسلامي نړۍ نومیالی عالم دوکتور وهبة الزحیلي-رحمه الله- په خپل کتاب (العلاقات الدولية) کې لیکي:

« مسلمانان په خپلو جګړو سره د ځان او یا ټول بشریت د خیر ښیګڼې پورته کوونکي دعوت پرخلاف د تر سره کیدونکي تیري له منځه وړل غواړي، اسلام د نورو قومونو استحصال او استعمارونکی نظام نه تائیدوي، اسلام له دې ډول نظام څخه په ټوله معنا انکار کوي، همدا وجه ده، چې د

تاریخ په اوږدو کې یې هیڅکله هم استعماري څېره نه ده خپله کړې»

دوکتور وهبه زحیلي -رحمه الله - د همدې کتاب په مقدمه کې د جهاد، د ارزښت په هکله لیکي:

«که څه هم په اوسنۍ بشري ټولنه کې د مثالي اصولو د پلي کیدو د عوه کیږي او خلکو ته د بشر دوستۍ د اصولو پر اساس د ټولو معاملو د پرمخ بیولو بلنه ورکول کیږي او د دې ډول اصولو څارنه او سرپرستي د ملګرو ملتونو په نامه نړیواله اداره کوي؛ خو د دې ډول ښکاره سولې تر شا لا هم ډول-ډول وېرونکې وسلې، جراړې لښکرې او په یوه ثانیه کې د ټول بشریت له منځه وړونکي اتومي بمونه پټ دي!

له همدې امله چې قران کریم مسلمانانو ته دمادي او معنوي ځواک تیارولو کوم ټینګار کړی او رسول الله صلی الله علیه وسلم جهاد، د اسلام لوړه څوکه بللې، یوه منطقي او پرځای بلنه ده؛ ځکه چې اوسنۍ نړۍ کې د خبرې منلو معیار همدا دی او ځمکني حقایق هم همدا وایي»

موږ په دې لنډه لیکنه کې د جهاد په هکله یو څو بحثونه کوو:

**د جهاد معنا:**

جهاد په لغت کې د دښمن په مقابل د خپل توان او طاقت کارولو ته وایي، او شرعي معنا یې علامه حصکفي رحمه الله داسې کړې ده:

« رښتني او حق دین ته بلنه او چې څوک یې نه قبلوي هغه سره جګړې ته جهاد ویل کیږي»

الدر المختار (۴/ ۲۹۶)

**د جهاد فضیلت:**

په قران کریم او نبوي حدیثونو کې د جهاد او مجاهدینو ډېر زیات فضیلتونه راغلي دي، موږ یې یوڅو په لنډ ډول را اخلو:

الله تعالی فرمایي: ﴿إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِهٖ صَفًّا كَاَنَّهُمْ بُنْيَانٌ مَّرْصُوْصٌ۰۰۴﴾ [الصف:۴] ژباړه: بې شکه هغه کسان د الله ښه ایسي چې د الله په لار کې داسې کتار تړولګي جنګیږي لکه چې دوی کلایي کړی شوی (پوخ) دېوال وي.

بل ځای فرمایي:

﴿لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ وَ الْمُجٰهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ١ؕ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَ اَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ دَرَجَةً١ؕ وَ كُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى١ؕ وَ فَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًاۙ۰۰۹۵﴾ [النساء:۹۵] ژباړه: د مؤمنانو بې عذره ناست کسان او د الله په لار کې په مالو او ځانو جهاد کوونکي سره برابر نه دي، په مال او ځان مجاهدینوته الله پردغو ناستو کسانو د خاصې درجې فضیلت ورکړی دی. (که څه هم) الله له هریوه سره د ښې بدلې لوظ کړی، خو مجاهدینوته یې پرناستو دلوی اجر فضیلت ورکړی.

**نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایي:**

عن أبي هريرة قال: سئل رسول الله صلى الله عليه وسلم أي الأعمال أفضل؟ قال: إيمان بالله قال: ثم ماذا؟ قال: الجهاد في سبيل الله قال: ثم ماذا؟ قال: حج مبرور. ( صحيح مسلم : بيان كون الإيمان بالله تعالى أفضل الأعمال . رقم الحديث :۱۱۸)

ژباړه: له حضرت ابو هریره رضي الله عنه څخه روایت دی، چې له رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه وپوښتل شول: کوم عمل غوره دی؟ هغه وفرمایل: په الله تعالی ایمان راوړل، پوښتنه وشوه بیا کوم؟ ویې فرمایل: د الله تعالی په لار کې جهاد کول. پوښتنه وشوه بیا کوم؟ ویې فرمایل: قبول شوی حج.

په حدیث شریف کې د الله تعالی په لار کې جهاد کولو ته له ایمان وروسته تر ټولو غوره عمل ویل شوي دي.

**د جهاد وېش او حکم:**

فقهاوو-رحمهم الله تعالی- قراني نصوصو او نبوي حدیثونو ته په پام، جهاد په دوه ډولونو وېشلی دی:

۱- فرض عین. فرض کفایه، چې هر یو یې ځانګړي حکمونه لري.

**د جهاد د فرض عین کېدو لاملونه:**

د جمهورو فقهاوو-رحمهم الله تعالی- په اند په لاندې مواردو کې جهاد فرض عین ګرځي:

۱- کله چې د جګړې په میدان کې د مسلمانانو لښکر د کافرانو له لښکر سره مخامخ شي؛ نو په اسلامي لښکر کې موجودو مسلمانانو باندې جهاد فرض عین دی.

الله تعالی فرمایي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا لَقِيتُمْ فِئَةً فَاثْبُتُوا وَاذْكُرُوا اللَّهَ كَثِيراً لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ﴾ [الانفال:۴۵] ژباړه: اې مؤمنانو! کله چې له کومې ډلې سره ونښلئ؛ نو ورته ټینګ شئ او الله ډېریادوئ ښایي بریالي شئ.

۲- کله چې کافران د مسلمانانو په یوه سیمه حمله وکړي، یا د حملې پلان لري او دمسلمانانو امیر/خلیفه د جهاد اعلان وکړي؛ نو د دې سیمې په ټولو وګړو-که څه هم مېرمنې یا هلکان وي- له خپلې سیمې د دفاع لپاره جهاد فرض عین دی، اوکه د دې سیمې خلکو د دفاع توان نه درلوده؛ نو د دې ځای په ګاونډ کې اوسیدونکو مسلمانانو باندې هم جهاد فرض عین ګرځي.

(الفتاوی الهندیة کتاب السیر الباب الاول)

الله تعالی فرمایي: ﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا مَا لَكُمْ إِذَا قِيلَ لَكُمْ انفِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ اثَّاقَلْتُمْ إِلَى الأَرْضِ أَرَضِيتُمْ بِالْحَيَاةِ الدُّنْيَا مِنَ الآخِرَةِ فَمَا مَتَاعُ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فِي الآخِرَةِ إِلاَّ قَلِيلٌ﴾[التوبه:۳۸] ژباړه: اې مؤمنانو! په تاسو څه شوي، کله چې درته وویل شي د الله په لارکې ووځئ؛ نو د ځمکې خواته درانه شئ؟ ایا د آخرت په مقابل کې د دنیا په ژوند رضا شوي یاست؟ نو د اخرت په مقابل کې خو ددنیایي ژوند سامان پرته له یو کم شي نورهیڅ نه دی.

یادونه: اوس مهال چې په افغانستان، فلسطین او نورو اسلامي هیوادونو کافرانو یرغل کړی ؛ نو پورته یادو شویو اصولو ته په پام د دې سیمو په مسلمانانو له خپل هیواد او سیمې د دفاع او د اشغال د پای ته رسولو لپاره، جهاد فرض عین دی.

له دې حالتونو پرته په نورو عامو حالاتو کې د الله تعالی د کلمې د لوړوالي لپاره او د مسلمانانو د برم او شان د ساتلو لپاره جهاد فرض کفایه دی، چې ځینې مسلمانان د دې سترې فریضې په سرته رسولو بوخت وي، د ټولو مسلمانانو غاړه خلاصیږي، او که په ټولیز ډول پرېښودل شي، بیا به ټول مسلمانان ګناهګار وي. (شرح السیر الکبیر /باب الجهاد مایسع منه ومالایسع)



# اعتراف امریکا به شکست در جنگ افغانستان

خروج نظامیان امریکا از افغانستان توسط رئیس جمهور دونالد ترامپ، درست در شرایطی اعلام شد که جنگ در افغانستان شکست خورده و سیاست واشنگتن دراین مورد به بن بست رسیده بود.

به گزارش اسپوتنیک، روزنامه امریکایی The National Interes در مقاله‌ای می نویسد که ، دونالد ترامپ رئیس جمهور ایالات متحده امریکا تصمیم گرفته است که نیرو های امریکایی مستقر در افغانستان را تا نیم کاهش داده و جنگ در این کشور را به پایان برساند.

روزنامه در ادامه می نویسد: با این حال، ایالات متحده نباید هیچ توهمی در مورد نتایج احتمالی خروج نیروهایش از این کشور داشته باشد.

روزنامه امریکایی خاطر نشان ساخته که ترامپ با خروج نیرو ها از افغانستان قصد پایان دادن به "جنگ شکست خورده" امریکا را دارد. اما نتایج خروج نیرو های امریکایی از افغانستان مبهم و ایالات متحده نباید خیالاتی را از نتایج این جنگ در سر داشته باشد.

در مقاله آمده است: در صورت خروج نهایی نیروهای ایالات متحده، متحدان واشنگتن در کشور های ناتو نیز ازاین اقدام پیروی خواهند کرد، زیرا اکثر این کشور ها مشتاق شرکت در جنگ افغانستان نبوده اند.

در مقاله خاطر نشان می گردد که واشنگتن با سیاست خود به هیچگونه پیشرفتی در آورن صلح در افغانستان نرسید: طالبان بخش اعظمی از کشور را و بیشتر از سال ۲۰۰۲ یعنی تقریبا ۶۰ درصد خاک این کشور را در کنترل خود دارند.

علاوه براین سطح امنیت در این کشور را می توان با حوادث اخیر ارزیابی کرد، زمانی که در نتیجه حمله کم بود که جنرال اسکات میلر "فرمانده نیروهای امریکا در افغانستان" کشته شود.

ناشنال اینترست می نویسد: استراتژی تحسین برانگیز جدی دولت ترامپ ، تنها در یک شاخص رشد خواهد داشت: تعداد بمب هایی که در افغانستان منفجر می شوند.

حتی طرفداران این جنگ اعتراف می کنند که امریکا در بهترین وضعیت به بن بست رسیده است و جنرال امریکایی جو دانفورد نماینده کمیته متحد روسای ستادها اعلام کرد که در افغانستان تصمیم نظامی وجود ندارد.

پیشتر زلمی خلیلزاد، نماینده ویژه ایالات متحده در امور صلح افغانستان نیز اعلام کرد که طالبان در نشست ابوظبی اعتراف کردند که بحران افغانستان راه حل نظامی ندارد.

در طول نزدیک به هجده سال حضور پررنگ و پرقدرت امریکا و متحدان آن در افغانستان، گروه‌های تروریستی و دهشت‌افگن در افغانستان قوت بیشتری گرفته‌اند.

امریکا و دیگر اعضای ناتو در سال ۲۰۰۱ به بهانه‌ی سرنگونی و نابودی لانه‌های تروریستی وارد افغانستان شدند، اما پس از هجده سال مبارزه‌ی بی‌ثمر، اکنون اعتراف می‌کنند که برنده‌ی جنگ جاری در افغانستان نخواهند شد.

پیشتر معاون سابق وزارت دفاع امریکا اعلام کرد، ما نباید مجبور شویم از بام سفارت امریکا با بالگرد از افغانستان فرار کنیم بلکه ایالات متحده باید راهی برای خروج آبرومندانه از این کشور پیداکند



# په سعودي کې د دولت يو بل خواشينوونکی اقدام

شهيد زوی

کابو ۵ زره کاله وړاندې د ثمود په نوم دخپل وخت يو خورا ځواکمن قوم و چې په حجر نومي سيمې کې مېشت و.

دوئ دومره ځواکمن وو چې غرونه بـه يـې تراشـل او کورونه به يې پکـې جـوړول؛ددوئ دا کورونـه اوس هـم پـه حجر کې موجود دي او دعالم په عجائباتو کـې ډېـره سـتره اعجوبه ګڼل کېږي.

حضرت هود عليه السلام چې الله تعالی قـوم عـاد تـه دپيغمبر په صفت لېږلی و په قوم عاد کې چې کومو خلکو په حضرت هود عليه السلام ايمان راوړی او له عذاب نه بچ شوي وو قوم ثمود د همدغو خلکو اولاده وه؛په دوئ کـې ورو ورو بـت پرسـتي شروع شـوه نـو اللـه تعـالی دوئ تـه حضرت صالح عليـه السـلام دپيغمـبر پـه صـفت مبعـوث کـړ؛دا ډېـر سرکـش قـوم و صـالح عليـه السـلام نـه يـې غوښتنه وکړه چې د تيګې نه راته اوښه راوباسه.

سيدنا صالح عليه السلام ددې غوښتنې نه منع کـړل خو دوئ په خپلې غوښـتنې اصرار وکـړ نـو دسـيدنا صالح عليه السلام په دعا اللـه تعـالی دغـر دتېـږې نـه يـوه اوښـه پيدا کړه او الله تعالی ددې اوښې په باره کې حکم وکړ چې پـه بـدې ارادې ورتـه لاس مـه وروړئ خـو دقـوم يـو ډېـر سرکش تن قدادبن سالف زخمي او بيا يې ووژلـه ؛سـيدنا صالح عليه السـلام پـوه شـو چـې اوس بـه پـدې بـاغي قـوم عذاب رانازلېږي نـو ورتـه يـې وويـل چـې درې ورځـو کـې بـه دالله تعالی عذاب راځي .

پرځای ددې چې قـوم د صالح عليـه السلام پـه خبره يقين کـړی او توبـه يـې ويسـتلی وای بـرعکس يـې دصالح عليه السلام دوژلو پلان جـوړ کړ؛صالح عليـه السـلام اللـه تعالی ددوئ دشر نه وساتلو او درې ورځـې پـس پـر دوئ سخته زلزله راغلـه او داسـمان نـه يـوې سختې هيبتنـاکې چغې دا ټول قام تباه کړ.

نو پدې توګه دا قوم دخپـل ټـول طاقـت او قـوت سره اللـه تعـالی دهمـېش لپـاره خـتم کـړ او ددوئ سـيمه او ودانئ دقيامت دورځې پورې راتلونکـو انسـانانو تـه عـبرت وګرځېد.

په سورة الاعراف، سورة الشعراء ، سورة النمل، سورة قمر، ســورة الحجر، ســورة الصفت، ســورة ص، ســورة الذاريات، سورة الحاقه، سورة الشمس کې په مختصر يا لږ تفصـيلي ډول دصـالح عليـه السـلام او دده دقـوم ذکـر راغلی.

دقوم ثمود ددې قريې نوم حجر دی او مـدائن صـالح هم ورته ويل کېږي؛داسيمه دمدينې منورې او دتبوک پـه منځ کې دمدينې منورې نه ۳۸۰ کيلومتره لرې شمال غرب لورته پرته ده ؛ او دتيماښار ورنه ۱۱۰ کيلـومتره لـرې پـروت دی.

دثموديانوپـه لاس پـه غرونـوکې تراشـل شـوي ۱۳۱ کورونه اوددې کورونو دروازې په خپل اصل او سالم شکل اوس هم پاتې دي چې له امله يې ۱۰ کاله وړاندې پـه ۲۰۰۸م کـال کـې يونيسـکوټول مـدائن صـالح دنړيوالـو اثـارو برخـه

وګرځوله چې له هغې وروسته دسعودي دولت ددې ځای ساتنې ته توجو زیاته کړه .

دتبوک غزا کې رسول الله صلی الله علیه وسلم د خپلو اصحابو سره یو ځای پدې ځای تېرېدلو نو صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین ته یې په تېزۍ ددې ځای نه دتېرېدلو حکم وکړ او ویې فرمایل چې دعذاب وهلي قوم له سیمې په ژړا تېر شئ!او که ژړا نه درځي نو دژړا کونکو په څېر خپل ځانونه جوړ کړئ!

رسول الله صلی الله علیه وسلم پخپله هم دې ځای ته په رارسېدلو خپله اوښه تېزه کړې وه او فرمایلې و چې ددوئ کورونو ته مه ورځئ کېږئ! داسې نه چې تاسو باندې عذاب راشي.

خو ډېره دتاسف نه ډکه خبره دا ده چې داځای اوس د سعودي عربستان ولي عهد محمد بن سلمان دنړۍ د ترټولواوړد کنسرت لپاره منتخب کړی.

د (مهرجان شتاء طنطوره ) په نوم دا کنسرټ ددسمبر په ۲۰ مې نېټې پیل او ۸ اوونۍ یانې دفرورۍ تر۷ نېټې به دوام وکړي چې دځایې سندرغاړو او هنرمندانو ترڅنګ به پکې د امریکا،اروپا،مصر او لبنان ګڼو هېوادونو عام او ۸ دنړیوال شهرت لرونکي شهرت سندرغاړي ګډون کوي   چې د ماجده رومي په نوم دلبنان خورا مشهورې سندرغاړې دخلکوتوجو ځان ته ډېره راجلب کړېده .

ددې پروګرام پرانسته والي بدربن عبدالله بن فرحان آل سعود وکړه او کنسرت دعربي نړۍ دنامتو سندرغاړي محمد عبده په سندرې عملاً پیل شو .

مدائن صالح قریه چې په کومې سیمې کې پرته ده دې لویې سیمې ته علاء ویل کېږي؛ اوس علاء دسعودی له ډېرو مهمو ښارونوڅخه دی .

په علاء کې یوډېرسترپخوانی ساعت دی چې طنطوره ورته ویل کېږي ؛ دا تاریخي شمسي ساعت په ځانګړې زاویې نصب دی چې به پرې ددې سیمې پخوانوخلکو  دموسمونو احوال معلومول چې تر اوسه همدا کلتورلا ژوندی دی ؛ په کومه ورځ چې ددې ساعت په سرلمر تېرېږي نو دلته ګڼ خلک له نېږدې سیمو راځي او دامعلوموي چې په موسم کې څه بدلون رامنځته کېږي.

دلته خلک دا وایې چې د دسمبر له ۲۱مې نېټې نه پس دلته هوا سړېږي.

دموسم معلومولولپاره دې تاریخي ساعت ته دسعودی له نورو سیمونه هم خلک راځي.

داچې ددې ځای دیخنۍ دپیل سره سم دلته دموسیقۍ پروګرام پیل شو نو ځکه یې ورته نوم هم (شتاء طنطوره ) دطنطوره ژمی کېښود .

دعربي نړۍ مشهور تلویزون الجزیره پدې اړه په خپل نشر کړي راپور کې ویلي دي چې پدې ورځو کې دقوم ثمود دعبرت اخستلو او ژړونکې ځمکه دنړۍ په سطحه دلوي رقص او سرود په مرکز بدله شویده او دنړۍ نامتوسندرغاړو ته پکې خپلې ورځې او وختونه ځانګړي شویدي؛پدې لړ کې چې دجمعې په مبارکې ورځ نامتو لبنانۍ هنرمندې ماجده رومي سندرې ویلې نو ګڼ لوړ رتبه چارواکې هم دلته راغلې وو.

دموسیقۍ ددومره اوږد پروګرام لپاره ددې ځای په انتخاب ټول هېواد سخت هیجان کې دی او دقرآن او احادیثو دلارښوونو پورې دخندا کولو له امله په هېواد کې نه یواځې مذهبي طبقه بلکې دسعودي عام اوسېدونکي هم دډېر اضطراب ښکار دي او وایې چې دا اقدام دالله تعالی عذاب ته دعوت ورکول دي.

دسعودي اوسېدونکو دشخصي روابطو لپاره جوړو شویو پاڼو کې ددې کنسرت په باره کې ښه په زغرده ویلي دي چې دا په سعودي کې دبې حیایۍ او فحاشۍ دخپرولو لپاره دتیار شوي پلان ډېره مهمه برخه ده.

دسعودي نامتو دیني عالم شیخ عبدالله المشهري او شیخ سامي العیقلي له خپلو ټویټر ادرسونو نه پدې اړه په یو خپور کړي پیغام کې لیکلي دي چې قرآنکریم ددې ځای نه دعبرت اخستلو حکم کړیدی خو دقرآن ددې لارښوونې برعکس محمدبن سلمان اوس د نړۍ دترټولو



ستر او اوږد کنسرت جوړولو حکم ورکړی چې دادقرآني لارښوونوپه مقابل کې ډېر لوی جرأت اودشرعي احکاموپرضد ډېر خواشینونکی اقدام دی .

په ټویټرکې المجتهدنومي پاڼه چې له ۲ملیونه زیات لیدونکي لري لیکلي دي چې خاص ځای ددې خورا اوږد کنسرت لپاره دټاکلونه ددولت هدف دخلکو دزړونونه دحدیث اهمیت ویستل دي ؛ په حدیث شریف کې راغلي دي چې داسې نه پرتاسو عذاب راشي ؛ خو دولت چې دلته دموسیقۍ پروګرام جوړ کړ نوخلکوته داښودل غواړي چې وګورئ ! هیڅ کوم عذاب رانغلو ؛ ترڅو پرحدیث دخلکواعتماد متزلزل شي .

حال داچې په حدیث کې دعذاب راتللوخبره دامکان ترحده ده یانې دعذاب راتللو وېره ښکاره شویده داسې ندي ویل شوي چې دلته تم کېدل اوعذاب راتلل سره لازم اوملزوم دي .

الجزیره تلویزون داپوښتنه هم راپورته کړی چې لبنانۍ سندرغاړې رومي ولې دې کنسرټ ته راغوښتل شوې حال داچې هغه دحزب الله په نوم هغې وسله والې ډلې سره خواخوږي اونېږدې روابط لري چې سعودي دولت یې دحزب الشیطان په نوم یادوي .

دمحترمو لوستوالو په علم کې به وي چې د۲۰۱۷م کال په جون میاشت کې دسعودي پاچا سلمان دخپل وراره نه د ولي عهد مسئولیت واخست او خپل زوی محمدبن سلمان یې ولي عهد کړ .

محمدبن سلمان چې ولی عهد دی نو ترځنګ یې ددفاع وزارت هم ورسره دی نو ددولت اصل واکمن همدا دی .

له بده مرغه چې محمدبن سلمان دولي عهدکېدلونه پس ټول غرب اوپه ځانګړي ډول امریکا ته دځان نږدې کولو اوخپلې وفادارۍ ښکاره لپاره ډېر خطرناک اقدامات وکړل ؛ کوموعلماء کراموچې دده د ناوړه اقداماتوسره خپل مخالفت ښکاره کاوه د۲۰۱۷م کال دستمبر میاشت نه پس یې دهغوئ نیول پیل کړل؛ په همدې لړ کې یې دکعبې امام شیخ صالح هم ونیو چې تر ننه یې د مړې ژوندي څه معلومات نه کېږي .

دولت د۲۰۱۷م کال په همدې ستمبر میاشت کې مېرمنو ته دموټر چلولو اجازه هم ورکړه او بیا یې په ټولوښارونوکې د۳۵ کلونوراهیسې دبندو سینماګانو دخلاصولواود سونونویو جوړول هم اعلان کړل او په سینماګانو کنسرټونو او نورو تفریحي ځایونوکې دمیرمنو اوسړو مخلوط کېناستلو اجازه یې هم ورکړه.

داکارونه نه یواځې دسعودیانو بلکې دټولې نړۍ دمسلمانانو لپاره د ډېر تشویش وړ ګرځېدلي دي ؛ په هېوادکې دننه اوله هېواد نه بېرون یې دسعودي دولت اوپه ځانګړي ډول محمدبن سلمان سخت بدنام کړی خوله بده مرغه چې محمد بن سلمان ته دا بدنامي بدنامي نه ښکاري ؛ هغه په امریکا اونور لویدیځ کې خپله نېک نامي غواړي چې ورته په برخه شوې اوپه همدې کارونوېې ځان امریکا اونور لویدیځ ته ورنېږدې کړیدی.

خو دسعودعربستان حاکمان اوپه ځانګړي ډول محمدبن سلمان باید پدې پوه شي چې دخپل هېواد اوټولې نړۍ په مسلمانانوکې ښه شهرت اومحبوبیت ددوئ دواک دبقا لپاره اصل اوبنسټیز حیثیت لري .

دامریکا تاریخ دادی چې دخپلو لاسپوڅو نه کار هم اخلي اوښه ډېر یې بدناموي هم او دا ددې لپاره چې کله یې بیا پرضد امریکا اقدام کوي لري کېدل او د اداري ختمېدل یې اسان وي ځکه چې په خپل ولس کې بدنام وي نو هیڅ خواخوږي یې نه وي چې ورنه دفاع وکړي .

نو دا اوس پرمحمد بن سلمان ده چې د الله تعالی اومسلمانانودخوشالولو لپاره اقدامات کوي او که دامریکا دخوشالولو لپاره الهی عذاب ته دعوت ورکوي .

له امله یې په سعودي عربستان کې محمدبن سلمان ډېر زیات بدنام شو.

# په بدن کې د ویټامینونو د کموالي نښې

**ـ د عضلاتو، د ګوتو د بندونو او پښو درد:**

پورته نښې په وجود کې د ویټامینونو د کموالي نښې دي. هغه غذاوې وخورئ چې کلسیم، پتاشیم او مګنیزیم لري. هغه کسان چې ډېر ورزش کوي له دې حالت سره مخ کېږي، خو دوی ته توصیه کېږي، چې باید ګیلاس، مڼې، انګور، کیلې او سبزیجات ډېر وخوري.

**ـ د شونډو چاودېدل:**

که مو شونډې وچاودېدې او یا یې ځنګونه زخمي شول، نو بدن مو د بي ویټامین له کموالي سره مخ دی. کېدای شي وجود مو د بي دوه، بي درې او بي دولس ویټامینونو له کمي سره هم مخ وي.

دا ستونزه عموماً په هغه کسانو کې لیدل کېږي چې اکثریت وخت سبزیجات خوري او یا مناسب غذايي رژیم نه لري.

ددې ستونزې د له منځه وړو لپاره حبوبات او بادام وخورئ.

**ـ د زیاتې ستړیا احساس:**

که تېره شپه مو هم کافي خوب کړی وي، خو بیا هم د ورځې په اوږدو کې له زیاتې ستړیا کړېږئ، نو وجود مو د بي دوه ویټامین له کمي سره مخ دی. ددې ستونزې د لمنځه وړو لپاره لبنیات، د چرګې هګۍ او غوښه وخورئ.

**ـ د پښو او لاسونو ویدېدل:**

د کار پرمهال مو اکثریت وخت پښې او لاسونه ویدېږي او د ګوتو په برخه کې د سوزش احساس کوئ، نو دا ستونزه د بي دولس او بي شپږ ویټامینونو د کموالي له وجې ده. ددې ستونزې د حل لپاره ګازې او لبلبو وخورئ. هګۍ هم په غذايي مهالوېش کې ورزیاتې کړئ.

**ـ په ملا، ورنونو او اوږو باندې د زخمونو نښې نښانې:**

که چېرې مو د وجود په پورته مشخصو ځایونو دغسې نښې احساس کړې، نو ستاسو وجود د ویټامین اې او ډي له کموالي سره مخ دی. ددې ستونزې د حل لپاره پاڼه لرونکي سبزیجات وخورئ او هغه غذاوې مهالوېش کې ورزیاتې کړئ، چې ویټامین اې لري. د ماهي غوښه هم ښه ده، خو د ورځې لس پنځلس دقیق لمر ته هم وګرځئ.

**ـ خفګان:**

په خفګان د اخته کېدو بېلابېل عوامل شته دي. یو له دغو څخه یې د ډي ویټامین کموالی دی. تازه څېړنه په ډاګه کوي، هغوی چې د ژمي په اوږدو کې د ډي ویټامین ترلاسه کوي، نو د هغوی په پرتله خوښ او ښه روحیه لري، چې بدن یې د ډي ویټامین په کموالي اخته وي.

اما تاسو باید پدې فکر کې ونه اوسئ چې د کال په کومه برخه کې یاستئ، خو بدن مو باید د ډي ویټامین پوره کړي. د لمر له وړانګو د ډي ویټامین ترلاسه کول او هغه خواړه خوړل چې د ډي ویټامین لري له خفګان څخه مو ژغورلی شي.

**ـ د ویښتانو توئېدل:**

د ویښتانو توئېدل هم ګڼ عوامل لري، خو یو له دغو څخه یې د بیوتین (د ویټامینونو له کورنۍ څخه دی) کموالی بلل کېږي. په ځانګړي ډول هغه ورزشکاران چې خامې هګۍ خوري د بیوتینو له کموالي سره مخ کېږي او ویښتان یې توئیږي.

په خامه هګۍ کې د (آویدین) په نوم یوه ماده شته، چې د بیوتین موادو

د جذب مخه نیسي. په همدې اساس ورزشکارانو ته توصیه کېږي، چې د خامو هګیو له خوړلو ډډه وکړي. که چېرې ددې عادت پرېښودل ورته ستونزمن وي، نو بیا دې په غذایي مهالوېش کې سبزیجات او میوه هم ورزیاته کړي.

**ـ د سترګو د دید کمزورتیا:**

که چېرې د شپې لخوا مو د سترګو دید بیخي کمزوری کېږي، نو بیا مو وجود د ویټامین اې له کموالي سره مخ دی. تاسو ته به معلومه وي چې ګازرې ددې ستونزې د حل لپاره تر ټولو ښه او اسانه نسخه ده.

**ـ بې اشتهایي:**

د بې اشتهایۍ ګڼ عوامل شته، خو یو له دغو څخه یې د بیوتین موادو کموالی دی. که له دې ستونزې سره مخ یاست، نو حل لاره یې داده چې بادام، هګۍ او حبوبات وخورئ.

**ـ زړه بدوالی او د ګیډې درد:**

که چېرې له داسې حالت سره مخ شوئ، چې ګیډې مو درد کاوه او یا په دوامداره ډول زړه مو بد، بد کېده، نو پوه شئ چې وجود مو د بي دولس ویټامین له کموالي سره مخ دی.

ددې ستونزې د حل لپاره جیګر، ماهي او هغه غذاوې وخورئ چې د بي دولس ویټامین لري.

**ـ له ژامو د وینې راتلل او هغه زخمونه چې نه ښه کېږي:**

که چېرې مو له ژامو وینه راتلله او یا مو په خوله کې داسې زخم راڅرګند شو، چې د ښه کېدو نه و، نو پوه شئ چې وجود مو د سي ویټامین له کموالي سره مخ دی.

ددې ستونزې د حل لپاره مالټې وخورئ او اوس یې موسم هم دی، خو پر دې سربېره هغه میوې او غذاوې مه هېروئ چې د سي ویټامین لري لکه دُلمه یي شنه مرچ او کیوي.

**ـ سر درد او ګنګسوالی:**

سر درد او ګنګسوالی د بي درې ویټامین کموالي نښه ده. هغه ناروغان چې دوامداره اسهال او یا (د عقل زوال) له ناروغۍ سره مخ وي، نو د بي درې ویټامین د کموالي نښه ده. د غوایي او خوسکي جیګر، د چرګ غوښه او ماهیان د بي درې ویټامینونو غوره سرچینې دي.

**ـ اسهال:**

که په دوامداره ډول په اسهال ناروغۍ اخته شوئ، نو دا ښیي چې وجود مو د بي نهه ویټامین په کموالي اخته دی. ددې ستونزې د حل لپاره باید د چرګ جیګر وخورئ. حبوبات او د غوایي یا خوسکي جیګر هم خوړلی شئ، خو پدې شرط چې ښه پوخ شوی وي.

**ـ بې خوبي:**

که کله داسې حالت دربانده راغی چې بیخي خوب نه ورځ، نو پوه شئ چې وجود مو د بي پنځه له کموالي سره مخ دی. ددې ستونزې اصلي عامل په بازار کې د پخوو شویو تیارو خوړو خوراک دی. که بې خوبي مو دوامداره شي، نو د پوستکي ښکلا ته مو هم زیان اړوي. د پسه جیګر یو له هغو خوراکونو دی چې ددې ستونزې په حل کې درسره مرسته کولای شي.

**ـ د پوستکي وچوالی:**

د پوستکي د وچوالي عوامل د اې او بي ویټامینونو کموالی دی. ددې ستونزې د حل لپاره سبزیجات، غله جات او د ماهي غوښه وخورئ

فیل ځنګله څخه په تیښته ؤ

کیدړی ترې وپوښتل : خبره څه ده؟

فیل وویل: د ځنګل سلطان امر کړی چې د اوښانو سرونه غوڅ کړئ.

کیدړی وویل: نو ته ولې تښتې ته خو اوښ نه یې؟

فیل وویل: زه پوهیږم چې زه اوښ نه یم خو د سر غوڅولو دنده یې خره ته سپارلې !



# د افغانستان د وروستي سیاسي وضعیت په اړه

## د اسلامي امارت اعلامیه

د افغانستان اسلامي امارت د هیواد په سطحه یو سرتاسري اسلامي او ملي ځواک دی، د تیرو نږدې دوو لسیزو راهیسې یې په سر او مال د امریکایي یرغلګرو ځواکونو او د هغوی د کورنیو او بهرنیو همکارانو سره مقابله کړې اوکوي یې. اهداف یې واضح او مشروع دي، چې هغه د هیواد خپلواکي او د اسلامي نظام قائمول دي.

د همدې مقصد د حصول لپاره په نظامي او سیاسي دواړو برخو کې فعالیت کوي.

د مسئلې د سیاسي حل لپاره یې لاره خلاصه پرېښې او د تماس ځای یې هم ښکاره دی چې هغه د اسلامي امارت سیاسي دفتر دي او په دوحه کې شتون لري.

هر هیواد چې د افغانستان د مسئلې په سوله ایز حل کې مرسته کول غواړي، کولی شي ورسره تماس ونیسي او اسلامي امارت یې هرکلی کوي؛ خو په افغانستان کې د اشغال مسئله زموږ د خپلواکي غوښتونکي مسلمان ملت مسئله ده، څرنګه او چیرې یې چې حل کول غواړو، دا زموږ حق دی.

دا مسئله د چا په فشار او تاکتیکي برخوردونو نه حل کیږي او نه هم دا د منلوور دي چې څوک د افغانستان مسئله د خپلو اړیکو د پرمخبیولو او خپلو ګټو د تر لاسه کولو لپاره وکاروي.

که امریکایان غواړي په ښه نیت مذاکراتو ته راشي او د افغانستان د مسلمان اولس مشروع غوښتنې ومني، په داسې کولو سره مسئله حل کیدای شي؛ خو که د افغانانو مشروع غوښتنو له منلو څخه تیښته کوي او په یوه او بله پلمه، د سولې تر نوم لاندې خپل استعماري او نظامي اهداف له سیاسي لارو تعقیبوي یا د نورو هیوادونو د تطمیع له لارې ناروا فشارونه اچوي، دا معنی لري چې د افغانستان د مسئلې په سوله ایز حل کې دلچسپي نلري.

څرنګه چې امریکایانو د تیر میلادي کال د نومبر په میاشت کې د دوحې په غونډه کې موافقه کړې وه چې په راتلونکې غونډه کې به له افغانستان څخه د خارجي قواوو په وتلو او د نورو هیوادونو په خلاف د افغانستان د خاورې د نه استعمالولو په موضوع خبرې کوو؛ خو اوس دوی له هغې اجندا څخه ډډه کوي او پخپله خوښه نوی موضوعات پکښې زیاتوي، نو له همدې امله، اسلامي امارت امریکایانو ته خبرداری ورکوي چې که دا وضعیت دوام کوي او امریکایان پخپله تګ لاره کې له ریښتونولي څخه کار نه اخلي؛ نو اسلامي امارت به هم اړ کیږي چې د سولې خبرې او مذاکرات ترهغه وخته وځنډوي ترڅو چې امریکا د ناروا فشارونو او تاکتیکونو پرته، واقعي سولې ته راوړاندې شوې نه وي.

د افغانستان اسلامي امارت

۹/۵/۱۴۴۰هـ ق ۲۵/۱۰/۱۳۹۷هـ ش ۱۵/۱/۲۰۱۹م

Srak Magazine

# څلی

ویل کېږي دا څلې په جنګي کلا کې د مایک سپېن په یاد جوړ شوی؛ ښه دی چې دا څلی جوړ شوی، دا د یو مقاوم او جهادي تاریخ عکاسي کوي، پېړی وروسته به دلته سیلانیان پوښتنه کوي، چې مایک سپین څوک وو؟ دلته د څه لپاره راغلی وو؟ چا وواژه او ولې یې وواژه؟

دا هر څه د تاریخ نښې دي، جنګي کلا د یو لوی وحشت نماد دی او د مایک څلی د دې وحشت تر ټولو غوره تشریح ده.